۸ـ ښوونکي ته اضافي معلومات او ماخذونه:
محمد مصطفیﷺ د عبدالله زوی، د عبدالمطلب لمسی او د هاشم کړوسی دی د نړۍ او بشر دغه ستر لارښود د **۵۷۱** مېلادي کال د اپریل په (۲۰مه) یا د ربیع الاول په دولسمه د دوشنبې په ورځ سپېده داغ مهال دې نړۍ ته تشریف راوړ.
هاشم د سوداګرۍ لپاره شام ته روان و، څو ورځې په مدینه کې پاتې شو، هلته یې د بني نجار کورنۍ له سلمی سره واده وکړ. کله چې له شام څخه بېرته راروان و نو په غزه نومې ځای کې ومړ او هم هلته خاورو ته وسپارل شو. سلمی حامله وه او په خپل وخت ورکره هلک وزېږېد چې " شیبه" نوم یې پرې کېښود. شیبه اته کاله په مدینه کې وروزل شو. کله چې د هاشم ورور مطلب ته دا معلومه شوه چې وراره یې په مدینه کې دی نو مدینې ته لاړ، څه ورځې وروست یې وراره له ځان سره مکې ته راوست په مکه کې یې د هغه ډېره ښه پالنه اوروزنه وکړه، له همدې امله شیبه په عبدالمطلب مشهور شو، یعنې د مطلب غلام.
عبدالمطلب په خپل وخت کې د بیت الله (کعبې شریفې) ډېر زیات خدمت وکړ، د زمزم ورک او خراب شوی کوهی یې پیدا او بېرته فعال کړ.
د عبدالمطلب د (۱۲) زامنو یادونه شوې ده، چې مشهور یې دا وو: ابولهب، ابو طالب، عبدالله، حمزه، عباس او حارث.
عبدالله په ۱۷ کلنۍ کې د "زهره" قبیلې د وهب له لور سره واده وکړ چې "آمنه" نومېده. د محمدﷺ خپله مور (آمنه) او رضاعي مور یې(حلیمه) نومېده چې محمدﷺ ته یې شیدې ورکړې وې. همدا راز "ام ایمن" هم د رسول اللهﷺ رضاعي مور وه. د رسول الله ﷺ پلار (عبدالله) د هغه ﷺ تر زوکړې دمخه وفات شوی و. کیسه داسې وه چې هغه شام ته د سوداګرۍ لپاره تللی و کله چې بېرته مدینې ته راورسېد نو ناروغه او هلته وفات او خاورو ته وسپارل شو.
پخپله عبدالمطلب د وهب له بلې لور "هاله" سره واده وکړ. د رسول الله ﷺ تره (حمزه) د عبدالمطلب له همدې مېرمنې زېږېدلی دی. حمزه له یوې خوا د رسول اللهﷺ تره او له بلې خوا یې ترورزی دی.
په شپږ کلنۍ کې یې مور (آمنه) له مدینې منورې څخه چې محمدﷺ هم ورسره و د بېرته راستنېدو په لار په (ابواء) نومي ځای کې وفات او همالته خاورو ته ورسپارل شوه. وایي چې رضاعي مور یې (حلیمه سعدیه) تر ډېره ژوندۍ وه او په اسلام مشرفه شوې وه. رسول اللهﷺ سکني ورونه او خویندې نه درلودل، خو د ثویبه څخه د پېغمبرؑ رضاعي ورونه، مسروح، حضرت حمزه او ابو سلمه بن عبدالاسد وو. او له حلیمې څخه یې رضاعي خویندې او ورونه عبدالله، انیسه، شیما او ابوسفیان بن الحرث وو. د حلیمې زوی او لور عبدالله او شیما په اسلام هم مشرف شوي وو.
رسول اللهﷺ اته کلن و چې نیکه یې هم وفات شو. وروسته یې روزنه خپل تره (ابو طالب) پر غاړه واخیسته. پنځه ویشت کلن و چې له ام المؤمنین بي بي خدیجة الکبریٰ (رضی الله عنها) سره یې واده وکړ. ۴۰ کلن و چې په پیغمبرۍ مبعوث شو. دري پنځوس کلن و چې له مکې معظمې څخه یې مدینې منورې ته هجرت وکړ.
حضرت محمدﷺ لا پیغمبر شوی نه و او نوی زلمی و چې په امین او صادق مشهور و. هغه ﷺ په زلمیتوب کې هم ډېر مدبر او ځیرک ځوان و، له همدې امله ټولو خلکو د هغهﷺ ډېر درناوی کاوه.
حضرت محمدﷺ پنځه دېرش کلن و چې د بیت الله په دېواله کې د حجرالاسود د ایښودلو په سر د قریشو د قبیلو ترمنځ اختلاف پیدا شو، هرې قبیلې غوښتل دا شرف تر لاسه کړي. ددې شخړې د سوله ییز حل لپاره

خلکو وویل چې هر څوک لومړی د صفا له لارې حرم ته راننوت، هغه به زموږ پرېکړه کوي. حضرت محمدﷺ لومړنی کس و چې راننووت، په دې وخت کې ټولو په یوه غږ وویل: امین راغی، امین راغی؛ نو هغه به ډېره ښه پرېکړه وکړي.
هغهﷺ حجرالاسود په یوه څادر کې کېښود او د هرې قبیلې مشر ته یې د څادر یوه څنډه په لاس کې ورکړه او بیا یې په ټاکلي ځای کې په خپلو مبارکو لاسونو کېښود او په دې ډول د حضرت محمدﷺ په سم تدبیر دغه شخړه په سوله ییز ډول حل شوه او قریش له جګړې څخه وژغورل شول.
حضرت محمدﷺ ته په څلوېښت کلنۍ کې د حراء په سمڅه کې د اللهﷻ له لوري د جبرایل ؑ په واسطه د پیغمبرۍ ستره دنده ابلاغ شوه. له همدغه وخته هغه ﷺ اسلام ته دبلنې کار پیل کړ. رسول اللهﷺ **۲۳** کاله د اسلام د سپېڅلي دین د خپرولو لپاره شپه او ورځ هلې ځلې وکړې.
په ټولو انسانانو کې خدیجة الکبرٰی (رضی الله عنها) لومړنۍ ښځه وه چې په حضرت محمدﷺ یې ایمان راوړ. په نارینه وو لویانو کې حضرت ابو بکر صدیقؓ او د لږ عمر په نارینه وو کې حضرت علي (کرم الله وجهه) لومړني کسان وو چې مسلمانان شول. په آزاد شویو مریانو کې حضرت زید بن حارثهؓ لومړی مسلمان و. حضرت محمدﷺ د پیغمبرۍ په دیارلسم کال له مکې نه مدینې منورې ته هجرت وکړ. لس کاله یې په مدینه منوره کې په داسې شان ژوند وکړ چې د اسلام په مبارک دین یې د حجاز سربېره ډېرې نورې سیمې هم روښانه کړې. حضرت محمدﷺ د **۶۳** کالو په عمر د ربیع الاول په دولسمه (په مشهور روایت) د دوشنبې په ورځ له دې فاني نړۍ څخه سترګې پټې کړې. په مدینه منوره کې د حضرت عایشې رضی الله عنها په حجره کې خاورو ته وسپارل شو.
انا لله و انا الیه راجعون.

ماخذونه:
د زیاتو معلوماتو لپاره لاندیني ماخذونه وګورئ:


۱- سیرت النبي، لومړی ټوک، شبلي نعماني، دعزیزالرحمن سیفي ژباړه، پښتو ټولنه، **۱۳۵۰**هـ ل کال.
۲- محمد د اسلام هغه پیغمبر چې باید له سره یې وپېژنو، کونستان ویرژیل، ګیورګیو، میوند خپرندویه ټولنه، **۱۳۸۵**هـ ل کال.
۳- سیرة النبي(رحیق المختوم) مولانا صفي الرحمن مبارکپوري، د مولوي عبدالخالق ژباړه، انوارالقرآن پېښور، **۱۳۶۹**هـ ل کال.
۴- د حضرت سید المرسلین ... عبدالحمید صمدي، نیو کابل کتابپلورنځی، **۱۳۸۴**هـ ل کال.

# دریم لوست

## د تدریس د لارښود پلان

**د تدریس وخت: (درې درسي ساعتونه)**

| د مطالبو سرلیکونه | د مطالبو شرحه |
|---|---|
| ۱ـ د لوست موضوع | خپلواکي |
| ۲ـ د زده کړې (پوهنیزې، مهارتي او ذهنیتي)موخې: | ـ د هېواد له تاریخ سره اشنا کېدل.<br>ـ د خپلواکۍ په مفهوم او ارزښت پوهېدل.<br>ـ د افغانستان د خپلواکۍ په اړه معلومات ترلاسه کول.<br>ـ د لوستلو او لیکلو د مهارتونو پیاوړي کول.<br>ـ په جملو کې د نوو لغتونو د کارونې د فعالیت پیاوړي کول.<br>ـ د هغو شاعرانو پېژندل چې خپلواکي یې په شعرونو کې ستایلې ده. |
| ۳ـ د تدریس لارې: | لوستل او لیکل، پوښتنې او ځوابونه، ډله ییز فعالیتونه، یو کسیز فعالیت |
| ۴ـ د تدریس وسیلې: | درسي کتاب، توره تخته، تخته پاک، تباشیر، کتابچه او قلم. |
| ۵ـ د ارزونې لارې او وسیلې: | شفاهي ارزونه، عملي کار، پوښتنې.<br>د لوستلو، لیکلو او ډله ییز کار څارل او پایلې یې په کتابچه کې لیکل. |
| ۶ـ د زده کړې او تدریس فعالیتونه: | لومړنی فعالیت: روغبړ، د حال احوال پوښتنه، د حاضرۍ اخیستل، د کورني کار کتنه. |
| | د انگېزې رامنځته کول: پر تخته د خپلواکۍ په اړه یو بیت لیکل او له زده‌کوونکو څخه د هغه معنا غوښتل چې خبرې پرې وکړي. |

| ۶-۱ د ښوونکي فعالیتونه | د زده‌کوونکو فعالیتونه |
|---|---|
| ـ ښوونکی متن په لوړ غږ لولي او زده‌کوونکي خپلو کتابونو او د متن اورېدلو ته هڅوي.<br>ـ د متن په لوستلو کې د زده‌کوونکو د تېروتنو سمول.<br>ـ هر زده‌کوونکي ته په یوه فعالیت کې وخت ورکول چې پوښتنو ته ځوابونه ووایي.<br>ـ د ګرامري پلان له مخې زده‌کوونکو ته د ټاکلې برخې په اړه معلومات ورکول.<br>ـ د زده‌کوونکو هڅونه چې د ټولګي په مخکې خبرې وکړي او د لوست لنډیز ووایي.<br>ـ د جملو په بشپړولو او د تمرینونو په حلولو کې د زده‌کوونکو لارښوونه.<br>- ښوونکی کورنۍ دنده ورکوي. | - زده‌کوونکي د ښوونکي لوستل څاري او د کتاب متن ته ګوري.<br>ـ زده‌کوونکي متن لولي او خپلې تېروتنې سموي.<br>ـ زده‌کوونکي په فعالیتونو کې برخه اخلي او پوښتنې ځوابوي.<br>ـ زده‌کوونکي د ښوونکي معلوماتو ته غوږ نیسي او په متن کې صفتونه په نښه کوي.<br>- زده‌کوونکي په وار سره د ټولګي په وړاندې د لوست لنډیز وایي.<br>- زده‌کوونکي لغتونه په جملو کې کاروي او د تمرینونو په حلولو کې برخه اخلي.<br>- زده‌کوونکي کورنۍ دنده اخلي. |

۷ـ د متن د ستونزمنو برخو روښانه کول:

د انګرېزانو پر ضد د افغانانو لومړۍ جګړه په ۱۸۳۹ م. کال ، دویمه په ۱۸۷۹م. کال او درېمه په ۱۹۱۹م.کال کې رامنځته شوه.

فضل احمد خان غر: فضل احمد خان غر د حضرت عبدالله زوی دی. د پېښور د مردان په (سر ډېرو) کلي کې په ۱۸۹۹م. کال کې زېږېدلی. نوموړی یو ملي شاعر و. "قومي ترانه" او "د غره ګلونه" په نامه د هغه دوه شعري ټولګې چاپ شوې دي. تر لسم ټولګي پورې یې زده کړې کړې وې. په ۱۹۲۲م. کال کې د حیدر اباد دکن ته لاړ، تر ۱۹۴۹م. کال پورې هلته د خپل ماما عبدالجبارخان کره و او بیا بېرته خپل وطن ته راغی کله چې هند او پاکستان وېشل کېده او د مسلمانانو او هندوانو کورنۍ جګړې پیل شوې نو د ۱۹۴۷م. کال په دغو شخړو کې یې ټول اشعار وسوځېدل. غر ډېرې قصیدې ویلي دي، په اردو کې یې هم شاعري کړې ده. فضل احمد غر افغان د شلمې مېلادي پېړۍ په اوومه لسیزه کې مړ دی.

۸ـ ښوونکي ته اضافي معلومات او ماخذونه:

خپلواکي هغه ستر الهي نعمت دی چې د یو هېواد د خلکو په مبارزو او سرښندنو ترلاسه کېږي او په علم، پوهه او تدبیر ساتل کېږي. موږ ځکه هر کال د خپلواکۍ ورځ لمانځو چې د ډېرو قربانیو او سرښندنو وروسته مو ترلاسه کړې ده.

افغانانو د خپلواکۍ د ساتلو پر سر له پردیو سره ډېرې جګړې کړې، چې درې یې له انګرېزانو سره په دې ډول دي:

له انګرېزانو سره د افغانانو لومړۍ جګړه:

انګرېزانو د شاه شجاع سره د شل کلنې ملګرتیا وروسته په لاهور کې یو تړون لاسلیک کړ او هغه یې د کابل پر تخت کېناوه؛ خو ټول اختیارات د انګلیس د نماینده مکناټن په لاس کې وو.

شاه شجاع د ۱۸۳۹م کال د اګست په ۱۷مه نېټه پاچا شو؛ خو یوه شو چې تش په نامه پاچا دی، هغه د

انګلیس له چال چلند نه راضي نه و، د ملي مبارزینو سره یې وکتل او هغوی ته یې د قیام اجازه ورکړه.
ملي مبارزینو ځای پر ځای چاپې او حملې پیل کړې، په دې وخت کې امیر دوست محمد خان چې بخارا ته یې پناه وړې وه بېرته راغی او له مجاهدینو سره ملګری شو، خو په ایبک (سمنګانو) کې یې ماته وخوړه او انګرېزانو ته تسلیم شو. هغوی سمدلاسه له کورنۍ سره کلکتې ته واستاوه.
د مبارزینو حملې روانې وې، په کوهستان کې د انګلیس یو کنډک عسکر نابود شول. په کابل کې د ملي قیام په نتیجه کې چې مشري یې امین الله خان لوګري او عبدالله خان اڅکزي کوله د انګلیس سیاسي نماینده الکساندر برنس ووژل شو.
د انګلیس سفیر مکناټن هم د وزیر محمد اکبر خان له خوا ووژل شو. انګرېزانو د تېښتې لار خپله کړه او د جلال آباد په لور وخوځېدل په لاره کې مجاهدینو د انګرېزانو ۱۷ زره پوځ وواژه او یوازې یو پوځي ډاکټر (برایډن) په زخمي حالت کې جلال آباد ته ورسېد، نور ټول پوځ تباه شو.
شاه شجاع هم د تېښتې لار ونیوله چې هغه هم د ۱۲۴۲م کال د اپریل په دویمه نېټه د سیاه سنګ په سیمه کې ووژل شو، په دې جګړه کې انګرېزان نړۍ ته شرمنده او بدنام شول. هماغه وو چې امیر دوست محمد خان یې چې په هند کې ساتلی و بیا د کابل امارت ته راولېږه.
امیر دوست محمد خان هڅه کوله چې پر وضع کنټرول وساتي، نو یې د خپل زوی وزیر محمد اکبر خان اختیارات کم کړل او نور مبارزین یې بندیان کړل. په روان بحراني حالت کې غازي وزیر محمد اکبر خان په جلال آباد کې ناروغه او مړ شو؛ خو حالات لاهماغسې نارامه او کړکېچن وو او د انګلیس په مقابل کې مبارزې او هلې ځلې روانې وې.
د افغانانو او انګرېزانو دویمه جګړه:
دا جګړه د ۱۸۸۷م کال د نوامبر په شلمه رامنځته شوه. انګرېزانو له دریو خواوو حمله پیل کړه.
۱. د جنرال اسام برون (Asom brown) په مشرۍ ۱۵ زره عسکر د خیبر درې له لارې رادمخه شول، خو اپریدو یې مخه ونیوله او جنګ ادامه وموندله.
۲. جنرال رابرټس (Roberts) د ۲۵۰۰ عسکرو په مشرۍ د کورمې له لارې حمله پیل کړه چې تن په تن جګړه پیل شوه او ډېره مرګ ژوبله پکې وشوه.
۳. جنرال دونالد استوارت (Donald Astwart) د کویټې له لارې له ۱۲ زره عسکرو سره د کندهار په لور راوخوځېد. په دې وخت کې غازي محمد جانخان وردګ، ملا دین محمد چې په ملا مشک عالم مشهور و او ملا عبدالغفور لنګري د خپلو ملګرو سره په غزني کې د انګلیس مقابله وکړه.
په تګاب او نجراب کې محمد عثمان خان ساپي، په لوګر کې غلام حیدر خان چرخي او ورور یې سمندر خان او په کوهدامن او کوهستان کې میر بچه خان کوهدامني او میر غلام قادر خان (اوپیاني) د مجاهدینو او غازیانو مشري کوله. په دې وخت کې غازي محمد جان خان په شهادت ورسېد خو جنرال رابرټس ماته وخوړه.
سردار محمد ایوب خان چې د وخت په حکومت کې یې دنده درلوده له خپلو عسکرو سره د مجاهدینو ملګری شو. په همدې وخت کې د میوند جګړه رامنځته شوه. افغاني مېړمنې او پېغلې له خپلو ورونو سره اوږه په اوږه جنګېدې چې له دغې ډلې څخه پېغله ملالۍ د دښمن په مقابل کې په مېړانه وجنګېده او خپل ملي بیرغ یې اوچت او هسک وساته.
انګرېزانو د ۱۸۸۰ کال د جولای په میاشت کې ماته وخوړه او له کندهاره وتښتېدل او سردار محمد ایوب خان د میوند د فاتح په نوم ونومول شو او د ملالۍ نوم تراوسه د تاریخ په پاڼو کې ثبت دی.
کله چې انګرېزان په کابل کې د کندهار له ماتې خبر شول؛ نو دوی هم وارخطا شول او له ډېرې مرګ ژوبلې

وروسته مات گوډ له کابله هم وتښتېدل.

د افغان انګلېس درېمه جګړه:

د امیر حبیب الله خان تر مرګ وروسته د هغه زوی امان الله خان په کابل کې د پاچاهۍ اعلان وکړ او د چارو په سمون یې پیل وکړ. نوموړي د ۱۹۱۹م کال د اپریل په ۱۳مه نېټه په یوه بیانیه کې ټولو نړیوالو ته په ډاګه اعلان وکړ چې افغانستان نور یو آزاد، خپلواک او مستقل هېواد دی، د هېچا واک پر ځان نه مني؛ خو د ټولو هېوادو سره نیک روابط غواړي او د انګلیس سره پخواني تړونونه نه مني.

د انګلیسانو نماینده چې په کابل کې یې د خبرنګار په توګه کار کاوه، دغه موضوع خپل حکومت ته ورسوله. د برتانیې حکومت ددې خبر په اورېدو وارخطا شو د نوي معاهدې نه یې ډډه وکړه او د تېري لپاره یې تیاری ته ملا وتړله. امان الله خان ته دا رنګه عکس العمل د منلو وړ نه و، فوراً یې محمد ولي خان په بخارا کې د خپلواک دولت د سفیر په توګه وټاکه او ایران ته یې هم د سفیر د لېږلو فیصله وکړه.

همدارنګه د انګلیس په مقابل کې یې د جنګ او قیام تصمیم ونیو، او افغاني لښکرې چې ولسي خلک هم ورسره ملګري شول په درې محاذونو کې د انګلیس مقابله پیل کړه:

صالح محمد خان سپه سالار خیبر ته، سپه سالار محمد نادر خان خوست ته او عبدالقدوس خان صدر اعظم کندهار ته ولېږل شول.

صالح محمد خان د باغ تانه ونیوله خو بیا زخمي شو پر شاتګ ته مجبور شو. محمد نادر خان ټل ته ورسېد او د انګرېزانو چونۍ یې ونیوله. د کندهار په محاذ کې هم سختې نښتې وشوې، په دې وخت کې د پښتنور، مومندو، تیرا، وزیرستان او ژوب خلکو ملي پاڅون وکړ، انګرېزان وارخطا شول، سولې ته یې غاړه کېښوده خپلو پوځونو ته یې د جنګ بندۍ امر وکړ خو خبرې یې جاري وساتلې.

له دواړو خواو نه ډېره مرګ ژوبله وشوه. په نتیجه کې انګرېزان مجبور شول چې د افغانستان آزادي په رسمیت وپېژني. هماغه و چې د ۱۹۱۹م کال د اګست په اتمه نېټه یې د امان الله خان سره د یو تړون په لاسلیک کولو افغانستان د یو آزاد او خپلواک دولت په توګه وپېژاند او زموږ هېواد د نړۍ په سیاسي نقشه کې د یو آزاد او مستقل هېواد په توګه ځای ونیوه.

ماخذونه:

۱- د افغانستان لنډ تاریخ، پوهاند عبدالحی حبیبي، ژباړه: عبدالروف بینوا.
۲- پښتانه د تاریخ په رڼا کې، سید بهادر شاه ظفر کاکاخیل.
۳- د پښتنو تاریخ، قاضي عطاء الله خان.

# خلورم لوست

## د تدریس د لارښود پلان

**د تدریس وخت: (درې درسي ساعتونه)**

| د مطالبو سرلیکونه | د مطالبو شرحه |
|---|---|
| ۱_ د لوست موضوع | د حضرت عمر فاروقؓ عدالت |
| ۲_ د زده کړې (پوهنیزې، مهارتي او ذهنیتي) موخې: | _ د عدالت پر مفهوم او معنا پوهېدل.<br>_ د متن سم لوستل او حضرت عمرؓ د یو عادل خلیفه په توګه پېژندل.<br>_ نوي او مشکل الفاظ زده کول.<br>_ دحضرت عمرؓ د ژوند په اړه معلومات درلودل.<br>_ زده‌کوونکي عدالت ته هڅول.<br>_ په زده‌کوونکو کې د غوږ نیولو مهارت پیاوړی کول.<br>_ لغتونه لیکل، معنا کول او په جملو کې کارول.<br>_ د لوست په مفهوم پوهېدل. |
| ۳_ د تدریس لارې: | لوستل او لیکل، پوښتنې او ځوابونه، ډله ییز فعالیتونه، یو کسیز فعالیت |
| ۴_ د تدریس وسیلې: | درسي کتاب، توره تخته، تخته پاک، تباشیر، کتابچه او قلم. |
| ۵_ د ارزونې لارې او وسیلې: | شفاهي ارزونه، عملي کار پوښتنې.<br>د لوستلو، لیکلو او ډله ییز کار څارل او پایلې یې په کتابچه کې لیکل |
| ۶_ د زده کړې او تدریس فعالیتونه: | لومړنی فعالیت: روغبړ، د حال احوال پوښتنه، د حاضرۍ اخیستل، د کورني کار کتنه |
| | د انګېزې رامنځته کول: په تخته با ندې د عدالت دکلمې لیکل ، زده‌کوونکي بحث ته هڅول او پوښتنه کول چې د عادل واکمن مثال ورکړي. |

| ۱-۲ د ښوونکي فعالیتونه | د زده‌کوونکو فعالیتونه |
| --- | --- |
| ـ زده‌کوونکو ته د لوست دمتن لوستل، بیا د متن په لوستلو کې د زده‌کوونکو لارښوونه او د هغو هڅونه چې متن ولولي.<br>ـ د متن په لوستلو کې د زده‌کوونکو د تېروتنو سمول.<br>ـ هر زده‌کوونکي ته وخت ورکول چې پوښتنو ته ځوابونه ووايي.<br>ـ د منځنۍ سویې زده‌کوونکو هڅول چې د ټولګیوالو په مخکې د لوست لنډیز ووايي.<br>ـ په ډلو د زده‌کوونکو وېشل او هرې ډلې ته د فعالیت ټاکل.<br>- د ګرامري اړخونو روښانه کول او ګرامري پوښتنې طرحه کول.<br>- د حضرت عمر فاروقؓ د ژوند د مهمو پېښو په اړه د زده‌کوونکو نظر اورېدل.<br>- ښوونکی د تمرینونو په حلولو کې د زده‌کوونکو لارښوونه کوي.<br>- ښوونکی کورنۍ دنده سپاري. | ـ زده‌کوونکي د متن لوستلو ته غوږ نیسي او بیا په وار سره متن پخپله لولي.<br>- زده‌کوونکي په لوستلو کې خپلو تېروتنو ته متوجه کېږي او سموي يې.<br>- زده‌کوونکي پوښتنې ځوابوي.<br>- څو تنه زده‌کوونکي د متن لنډیز په خپلو خبرو کې څرګندوي.<br>- زده‌کوونکي په ډله ییزو فعالیتونو کې برخه اخلي.<br>- زده‌کوونکي نوي لغتونه په جملو کې کاروي او د ورکړل شویو کلمو ضد کلمې پیدا کوي.<br>- زده‌کوونکي د عمر فاروق (رض) د ژوند په مهمو پېښو خبرې کوي او خپل نظر څرګندوي.<br>- زده‌کوونکي د تمرین په حلولو کې برخه اخلي.<br>- زده‌کوونکي کورنۍ دنده یاداشت کوي او په کورونو کې يې بشپړوي. |

۷ـ د متن د ستونزمنو برخو روښانه کول:

ـ حضرت ابوبکر صدیقؓ د حضرت محمدﷺ له وفات نه وروسته لومړی خلیفه و چې د حضرت محمدﷺ نژدې ملګری هم و. حضرت عمر فاروقؓ دویم خلیفه و. د حضرت عمر ؓ د عدالت ساری په نړۍ کې تر اوسه ونه لیدل شو.

ـ حضرت عثمان ؓ دریم خلیفه و.

ـ حضرت علي (کرم الله وجهه) څلورم خلیفه و.

۸ـ ښوونکي ته اضافي معلومات او ماخذونه:

حضرت عمر فاروقؓ د خطاب زوی او د نفیل یا نوفل لمسی دی. د زوکړې له پیله او د ژوند تر پایه يې همدا عمر نوم و. رسول الله ﷺ ورته د بدر د جنګ په ورځ د حفصې پلار (ابو حفص) کنیت او د مسلمانېدو په وخت کې د (فاروق) لقب ور کړی و. ښکلې څېره او دنګه ځواني يې درلوده. تر رسول الله ﷺ (۱۳) کاله کشر و. د جاهلیت په زمانه کې يې په نازولې او زړور زلمي شهرت درلود.

د نسب لړۍ يې په کعب بن لوئی کې له رسول الله ﷺ سره ګډېږي. په دې ترتیب عمر بن خطاب بن نفیل یا نوفل بن عبدالعزی بن رباح بن عبدالله بن قرط بن زراح بن عدی بن کعب بن لوئی.

په ځینو روایتونو کې راغلي دي چې(۹) زامن او(۴) لوڼې يې درلودې. د ځینو اولادونو نومونه يې دا دي: عبدالله، عبدالرحمن، ام المؤمنین حفصه او عبیدالله.

له رسول اللهﷺ سره يې د بدر له غزا څخه تر تبوک غزا پورې په ټولو غزاګانو کې ګډون درلود.
ام المؤمنين حفصه رضی الله عنها د عمرؓ لور وه. د هغې مېړه د احد په غزا کې ټپي او مړ شو؛ نو بيا رسول اللهﷺ نکاح کړه.
د عمر فاروق په اړه عبدالله بن مسعود ؓ وايي:
(له هغې ورځې راوروسته چې عمر مسلمان شو موږ عزتمند شوو، اسلام سوبې او مرستې وموندې، هغه وخت چې حضرت عمر ؓ په اسلام نه و مشرف شوی موږ دا ځواک نه درلود چې د بيت الله تر څنګ لمونځ ادا کړو)
له انسؓ څخه روايت دی، هغه وايي رسول الله ﷺ وويل:
(( زما د امت تر ټولو مهربانه ابوبکر صديقؓ او د دين په چارو کې تر ټولو سخت عمر ؓ دی.
عمر فاروقؓ د هغو لسو اصحابو له جملې څخه دی چې په ژوندانه ورته د جنت زېری شوی دی. دغه لس کسه اصحاب د عشره مبشره په نامه ياد ېږي او دادي:
ابوبکر صديق، عمر بن خطاب، عثمان بن عفان، علي بن ابي طالب، طلحه بن عبد الله، زبير بن عوام، سعد بن ابي وقاص، سعيد بن زيد، عبدالرحمن بن عوف او ابو عبيده عامر بن جراح رضی الله عنهم.
ابوبکرؓ به د خپل خلافت پر مهال تل له حضرت عمر فاروقؓ څخه د خلافت په چارو کې مشورې اخيستې. ابوبکرؓ، حضرت عمر ؓ د خپلې ناروغۍ په وروستيو کې د لمانځه د امامت لپاره وټاکه او د خپل ژوند په پای کې يې دا سپارښتنه وکړه چې د هغه تر مړينې وروسته عمر ؓ د مسلمانانو خليفه شي.
کله چې عمرؓ خليفه شو مسلمانانو ډېرې سوبې وکړې او اسلام په ډېرې چټکۍ سره خپور شو. دهغه د خلافت پر مهال دمشق، روم، قادسيه، حمص، جلولاء، رقه، رها، حران، رأس العين، خابور، نصيبين، عسقلان، طرابلس، بيت المقدس، بيسان، يرموک، جابيه، اهواز، قيصاريه، مصر، تستر، نهاوند، ری، اصفهان، پارس، اصطخر، همدان، نوبه، بربر، برس او نور فتح شول.
عمر فاروقؓ د خپل خلافت په وخت کې رعيت ډېر ښه وپاله او د بشريت په تاريخ کې يې د حکومت او عدالت داسې بېلګه وړاندې کړه چې تر اوسه يې ساری ونه ليدل شو.
عمر فاروقؓ په پای کې د سهار د لمانځه په وخت کې د مغيره د غلام (ابولؤلؤ) له خوا په دوه سره خنجر چې په زهرو ککړ شوی و ټپي او بيا شهيد شو. مبارک جسد يې د عايشې رضی الله عنها په دېره کې د رسول الله (ص) او ابوبکر صديقؓ تر څنګ خاورو ته وسپارل شو.

ماخذونه:
١- سيرت النبي، لومړی ټوک، شبلي نعماني، د عزيز الرحمن سيفي ژباړه، پښتو ټولنه، ١٣٥٠هـ ل کال.
٢- ايات عظام و فاروق اعظم، محمد حنيف حنيف بلخي، ١٣٨٧هـ ل کال.

# پنځم لوست

## د تدریس د لارښود پلان

**د تدریس وخت:** (**درې درسي ساعتونه**)

| د مطالبو سرلیکونه | د مطالبو شرحه |
|---|---|
| ۱_ د لوست موضوع | د ښځو حقونه |
| ۲_ د زده کړې (پوهنیزې، مهارتي،ذهنیتي) موخې: | _ د حق په معنا پوهېدل.<br>_ په لوست کې ګرامري برخې او نوې کلمې زده کول.<br>_ د انساني حقونو په اړه خبرتیا پیداکول<br>_ د ښځو حقونه پېژندل او په پام کې نیول.<br>_ په ټولنه کې د ښځې مقام پېژندل.<br>_ ښځه د ټولنې د یو اساسي رکن په توګه پېژندل.<br>_ د لوستلو او غوږ نیولو مهارت قوي کول. |
| ۳_ د تدریس لارې: | لوستل او لیکل، پوښتنې او ځوابونه، ډله ییز فعالیتونه، ځانګړی فعالیت. |
| ۴_ د تدریس وسیلې: | درسي کتاب، توره تخته، تخته پاک، تباشیر، کتابچه او قلم. |
| ۵_ د ارزونې لارې او وسیلې: | شفاهي ارزونه، عملي کار، پوښتنې<br>د لوستلو، لیکلو او ډله ییز کار څارل او پایلې یې په کتابچه کې لیکل |
| ۶_ د زده کړې او تدریس فعالیتونه: | لومړنی فعالیت: روغبړ، د حال احوال پوښتنه، د حاضرۍ اخیستل، د کورني کار کتنه |
| | د انګېزې رامنځته کول:ښوونکی دې د لاندې پوښتنو په طرحه کولو سره درس ته لاره پرانیځي اوزده‌کوونکي دې بحث ته راوهڅوي.<br>_ که ښځه نه وای، نو نړۍ به څه ډول وه؟<br>_ ښځه د ټولنې په جوړونه کې څه ونډه لري؟<br>_ ولې د ښځې مقام ته درناوی وشي؟ |

| ۱-۲ د ښوونکي فعالیتونه | د زده‌کوونکو فعالیتونه |
| --- | --- |
| ـ د متن په لوستلو کې د زده‌کوونکو لارښوونه او د هغو هڅونه چې پوښتنو ته ځوابونه ووایي.<br>ـ د متن په لوستلو کې د زده‌کوونکو د تېروتنو سمول.<br>ـ هر زده‌کوونکي ته وخت ورکول چې پوښتنو ته ځوابونه ووايي.<br>ـ له زده‌کوونکو څخه د درس په اړه ګرامري پوښتنې.<br>ـ د زده‌کوونکو هڅونه او تشویق چې د ټولګي په مخکې د ښځې په مقام خبرې وکړي.<br>ـ په ډلو د زده‌کوونکو وېشل او هرې ډلې ته د فعالیت ټاکل.<br>ـ د جملو په بشپړولو او د تمرینونو په حلولو کې د زده‌کوونکو لارښوونه.<br>- د کورنۍ دندې سپارل. | ـ د متن لوستل او د کتاب پوښتنو ته سم ځوابونه ويل.<br>ـ د ښوونکي خبرو ته غوږ نیول او خپلو تېروتنو ته پاملرنه کول.<br>ـ پوښتنو ته ځوابونه ويل.<br>- په متن کې د ښځینه نومونو په نښه کول او په کتابچه کې لیکل.<br>- زده‌کوونکي په ټولنه کې د ښځې په مقام او دريځ باندې خبرې کوي.<br>- زده‌کوونکي په ډله ییز فعالیت کې برخه اخلي.<br>- زده‌کوونکي جملې بشپړوي او د تمرینونو په حلولو کې برخه اخلي.<br>- زده‌کوونکي کورنۍ دنده یاداشت کوي او په کورونو کې پرې کار کوي. |

۷ـ د متن د ستونزمنو برخو روښانه کول:

مدني قوانین: هغه قوانین چې د یو ملک او هېواد سیاسي، اجتماعي، اداري، قضايي، مالي او نورې چارې تنظیموي.

متقابل احترام او غوره سلوک د نارینه او ښځې ترمنځ مینه او محبت رامنځته کوي او د کورنۍ په سالمه وده او نېکمرغۍ کې ستره ونډه لري.

زما مرۍ خپه کوې: یعنې زما په حق سترګې پټوې.

فطرت= پیدایشي خوی او عادت.

د پښتو ادب برخه په ښځو هم ښکلې ده، شعري او نثري ټولګې لري.

۸ـ ښوونکي ته اضافي معلومات او ماخذونه:

په دې باید باور ولرو چې د یوه هېواد سمسورتیا، پرمختګ او سوکالي پر نارینه وو سربېره د همغه هېواد په ښځو پورې هم تړلې ده. ښځې د ټولنې په وده او د کورنۍ په جوړولو او خوشحالتیا کې پوره، پوره ونډه لري. د مورتوب ټولنیز اهمیت او د ماشومانو په روزنه کې د پلار تر څنګ د مور زیارونه د ستاینې او تقدیر وړ دي.

که ښځه نه وای؛ نو نارینه به هم په نړۍ کې وجود نه درلود او نه به د دومره لوړ مقام خاوند و. لکه نن چې دی.

ښځه د نارینه مرستیاله او د ژوند تکمیلوونکې ده، په کار ده چې د اسلامي او مدني قوانینو په رڼا کې یې ټول حقوق په نظر کې ونیول شي. لکه:

- ښځه حق لري چې د اولاد په روزنه کې د پلار تر څنګ فعاله ونډه ولري او د بچو د تعلیم او شغل په برخه کې خپل نظر وکاروي.
- د اولاد د واده په برخه کې ښځې ته باید حق ورکړل شي چې خپله رایه څرګنده کړي.
- د کورني اقتصاد د کړنلارې په هکله له مېړه سره شریکه شي او فعاله ونډه ولري.
- ښځو ته باید د ژوند ټولې هغه اساتنیاوې برابرې شي چې یو نارینه یې لري.
- په ورځنیو کارونو کې د مېړه سره د مشورې او مرستې حق ورکړی شي.
- ښځو ته د نارینه په څېر د ژوند په ټولو برخو کې د فعالیت، مشورې او ګډون حق ضروري دی.
د اسلام له نظره د ښځو حقونو ته درناوی کول د عدل او انصاف ښنې دي، له هغوی څخه سترګې پټول او یا پر هغوی تجاوز کول په منکراتو کې راځي او هر انسان مسؤول دی چې په ځانګړې توګه یې ساتنه وکړي. هېڅ یو له ښځې او نر څخه یو پر بل برتري نه لري مګر په تقوی سره برتري موندلی شي.

ماخذ: د بشري حقونو نړیوال اسناد، ۱۳۸۳ هـ ل کال.

# شپږم لوست

## د تدریس د لارښود پلان

**د تدریس وخت:** (**درې درسي ساعتونه**)

| **د مطالبو سرلیکونه** | **د مطالبو شرحه** |
|---|---|
| ۱ـ د لوست موضوع | ملي یووالی |
| ۲ـ د زده کړې (پوهنیزې، مهارتي او ذهنیتي)موخې: | ـ د ملي یووالي په معنا پوهېدل.<br>ـ په ملي روحیې سره د زده‌کوونکو روزل او هغوی ملي یووالي ته هڅول.<br>ـ د لوستلو او لیکلو د مهارتونو پیاوړي کول.<br>ـ د متن سم لوستل او زده کول.<br>ـ په لوست کې نوې کلمې او اصطلاحات پېژندل او زده کول.<br>ـ د لوست گرامري برخې زده کول.<br>ـ د ملي یووالي پر اړتیا او گټو پوهېدل. |
| ۳ـ د تدریس لارې: | لوستل او لیکل، پوښتنې او ځوابونه، ډله ییز فعالیتونه، یو کسیز فعالیت. |
| ۴ـ د تدریس وسیلې: | درسي کتاب، توره تخته، تخته پاک، تباشیر، کتابچه او قلم. |
| ۵ـ د ارزونې لارې او وسیلې: | شفاهي ارزونه، عملي کار<br>د لوستلو، لیکلو او ډله ییز کار څارل او پایلې یې په کتابچه کې لیکل |
| ۶ـ د زده کړې او تدریس فعالیتونه: | لومړنی فعالیت: روغبړ، د حال احوال پوښتنه، د حاضرۍ اخیستل، د کورني کار کتنه |
| | د انگېزې رامنځته کول: دلاندې پوښتنو په طرح کولوسره د انگېزې پیدا کول.<br>له زده‌کوونکو نه پوښتنه کول، مثلاً:<br>ـ ملي وحدت ته څه اړتیا لرو؟<br>ـ ملي وحدت څه ته وایي؟ |

| ۱-۲ د ښوونکي فعالیتونه | د زده‌کوونکو فعالیتونه |
|---|---|
| ـ ښوونکی متن لولي او زده‌کوونکي خپلو کتابونو ته ځیروي.<br>ـ د متن په لوستلو کې د زده‌کوونکو د تېروتنو سمول.<br>ـ ښوونکی د ملي یووالي د شعر د مفهوم په اړه خبرې کوي.<br>ـ له زده‌کوونکو څخه د درس په اړه ځینې گرامري پوښتنې کول.<br>ـ د زده‌کوونکو هڅونه چې د ټولگي په مخکې خبرې وکړي او د لوست لنډیز ووایي.<br>ـ په ډلو د زده‌کوونکو وېشل او هرې ډلې ته د فعالیت ټاکل.<br>ـ ښوونکی د نویو کلمو په اړه معلومات ورکوي.<br>- ښوونکی کورنۍ دنده ټاکي. | - زده‌کوونکي لوستلو ته غوږ نیسي او خپلو کتابونو ته گوري.<br>- د ښوونکي خبرو ته غوږ نیسي او خپلې تېروتنې سموي.<br>- زده‌کوونکي غوږ نیسي او د شعر مفهوم پخپلو کتابچو کې لیکي.<br>- زده‌کوونکي ورکړل شوې مفردې کلمې په جمع اړوي.<br>- زده‌کوونکي په وار سره د ملي یووالي په مفهوم خبرې کوي.<br>- زده‌کوونکي په ډله ییزو فعالیتونو کې برخه اخلي.<br>- زده‌کوونکي نوې کلمې معنا کوي او بیا یې په جملو کې کاروي.<br>- زده‌کوونکي کورنۍ دنده اخلي. |

۷ـ د متن د ستونزمنو برخو روښانه کول:

که ملي وحدت نه وي، نو زیانونه یې ډېر دي، ټولنیز جوړښت له منځه ځي، سوله، امن او خوشحالي نشي راتلای، تل په هېواد کې شخړې او جنگونه وي؛ او هېواد پرمختگ نه شي کولای او په پایله کې یې هېوادوال له ډول ډول تنگسو سره مخامخ کېږي. ملي شتمني له منځه ځي او پرمختگ په ټپه درېږي. په پای کې هېواد او ملت له تباهۍ او بربادۍ سره مخامخ کېږي.

۸ـ ښوونکي ته اضافي معلومات او ماخذونه:

په دې لوست کې د ملي یووالي د شعر شاعر (گل پاچا الفت) په لنډه توگه درپېژنو:

گل پاچا الفت د میرسید پاچا زوی دی. نوموړی په ۱۲۸۷ هـ. ش. کال کې د لغمان په عزیز خان کڅ کې زېږېدلی دی. مروجه علوم یې په لغمان او ننگرهار کې لوستلي دي. هغه په معاصرو شاعرانو کې یوپېژندل شوی او منلی شاعر و. شعر یې ډېر روان، له ژورو پیغامونو او معناوو ډک او د هرلوستي د پوهېدو وړ دی. په شاعرۍ کې یې ډول ډول مضامین منعکس شوي دي. همدا لاملونه دي چې ولس دهغه شاعري زیاته خوښوي.

پر شاعرۍ سربېره هغه ډېر پیاوړی او ځیرک لیکوال هم و. د شعر په څېر یې د نثر ژبه هم ډېره روانه او د هر لوستي د پوهېدو وړ ده. نثر یې ډېر لوړ پیغامونه او ژورې معناوې لري. په شعر او نثر کې یې د کره کتنې او نیوکې اړخ ډېر پیاوړی دی. د الفت نثر او شعر دواړه یوازې او یوازې د ټولنیز سمون لپاره دي، دخپلو ځانگړو غرضونو لپاره نه دي او د چا سپکاوی نه کوي.

نوموړي کلونه کلونه د هېواد په بېلابېلو ادارو کې په ډېر اخلاص او صداقت کار کړی دی. د شورا په اوومه او اتمه دوره کې د وکیل په توگه هم ټاکل شوی و. له وکالت څخه وروسته د پښتو ټولنې مشر وټاکل شو.

گل پاچا الفت د لوړ فکر، ازاد خیال، علم او پوهې خاوند و. افغاني ټولنې ته یې په لس گونو علمي، ادبي او فرهنگي کتابونه پریښي دي. نوموړي په نظم او نثر کې ډېر آثار لیکلي دي، لکه: غوره نثرونه، غوره شعرونه، لیکوالي، املاء او انشاء، څه لیکل یا لیک پوهه، ملي قهرمان، ادبي بحثونه، اجتماعي نظریات، د زړه وینا او نور.

گل پاچا الفت د ۱۳۵۶ هـ. ش. کال د قوس په ۲۲ نېټه د۷۸ کالو په عمر وفات او په عزیز خان کڅ کې دکابل جلال اباد د لویې لارې تر څنگ په خپله پلرنۍ هدیره کې خاورو ته وسپارل شو.

ماخذونه

۱ـ اوسني لیکوال درې ټوکه، عبدالرؤف بېنوا، دولتي مطبعه کابل ۱۳۴۰، ۱۳۴۱، ۱۳۴۲هـل کلونه.
۲ـ د الفت مرغلرې، د شهرت ننگیال په زیار، دانش کتابخانه، پېښور دریم چاپ، ۱۳۷۵هـل کال.
۳ـ لیکوالي املاء او انشاء، گل پاچا الفت، پښتو ټولنه، ۱۳۳۹هـل کال.
۴ - څه لیکل یا لیکپوهه، گل پاچا الفت، د اتحاد مشرقي مطبعه، جلال اباد ۱۳۲۸هـل کال.

# اووم لوست

## د تدریس د لارښود پلان

**د تدریس وخت:** (**درې درسي ساعتونه**)

| د مطالبو سرلیکونه | د مطالبو شرحه |
|---|---|
| ۱ـ د لوست موضوع | د ماینونو او ناچاودو توکو د نښو پېژندنه |
| ۲ـ د زده کړې (پوهنیزې، مهارتي او ذهنیتي) موخې: | ـ ماینونه د یوې خطرناکې وسیلې په توګه پېژندل.<br>ـ له ماین ځخه د ځان، د ژغورلو په لارو چارو پوهېدل.<br>ـ د کورنۍ غړو او نورو کسانو ته له ماین ځخه د ځان ژغورنې لارښوونه کول.<br>ـ په لوست کې د ګرامري قواعد وپېژندل او زده کول.<br>ـد ماین لرونکو سیمو نښې پېژندل.<br>ـ له ماینونو د پاکو شوو سیمو د نښو پېژندل.<br>ـ متن په سمه توګه لوستل او په مفهوم یې ځان پوهول.<br>ـ نوي لغات او مشکل الفاظ زده کول او معنا کول. |
| ۳ـ د تدریس لارې: | د کتاب لـه مخې لوستل، پر تخته لیکل، د سوال او ځواب پـه شکل پرمخ تلل، ګروپونه جوړول او هر ګروپ ته مشخصه د نده سپارل. |
| ۴ـ د تدریس وسیلې: | درسي کتاب، توره تخته، تخته پاک، تباشیر، کتابچه او قلم.<br>په کاغذ د خطرناکو سیمو او پاکو سیمو انځورونه. |
| ۵ـ د ارزونې لارې او وسیلې: | شفاهي ارزونه، عملي کار پوښتنې<br>د لوستلو، لیکلو او ډله ییز کار ځارل او پایلې یې په کتابچه کې لیکل |
| ۲ـ د زده کړې او تدریس فعالیتونه: | لومړنی فعالیت: روغبړ، د حال احوال پوښتنه، د حاضرۍ اخیستل، د کورني کار کتنه |
| | د انګېزې رامنځته کول:<br>د ماین په اړه پوښتنه کول چې ماین څه ته وایي او د څه لپاره په کارېږي؟ |

| د زده‌کوونکو فعالیتونه | ۱-۲ د ښوونکي فعالیتونه |
|---|---|
| ـ د متن لوستل او د متن د لنډیز په اړه خبرې کول.<br>ـ د ښوونکي خبرو ته غوږ نیول او د خپلو تېروتنو سمونه.<br>- پوښتنو ته ځوابونه ویل.<br>- د ښوونکي لـه لارښـوونې سـره سـم گرامـري پوښـتنو تـه ځوابونه ویل.<br>- زده‌کوونکي په وار سره د لوست لنډیز پخپلو خبرو کې څرگندوي.<br>- په ډله ییز فعالیت کې برخه اخیستل.<br>- زده‌کـوونکي د جملـو تـش ځایونـه پـه مناسـبو کلمـو بشپړوي او د تمرینونو په حلولو کې برخه اخلي.<br>- زده‌کـوونکي د کـورنۍ دنـدې موضـوع پـه کتابچـه کـې لیکي او په کورونو کې یې بشپړوي. | ـ د متن په لوستلو کې د زده‌کوونکو لارښوونه او د هغـو تـشویق او هڅونـه چـې د مـتن لنـډیز پخپلو خبرو کې ووایي.<br>ـ د مـتن پـه لوسـتلو او د لنـډیز پـه بیـان کـې د زده‌کوونکو د تېروتنو سمول.<br>ـ هر زده‌کوونکي ته وخت ورکول چې پوښـتنو ته ځوابونه ووایي.<br>ـ لـه زده‌کوونکـو څخـه د درس پـه اړه ځینـې گرامري پوښتنې.<br>ـ د زده‌کوونکــو هڅونــه او تــشویق چــې د ټولگي پـه مخکـې خبـرې وکـړي او د لوسـت لنډیز ووایي.<br>ـ په ډلو د زده‌کوونکو وېشل او هرې ډلې تـه د فعالیت ټاکل.<br>ـ د جملو پـه بشپړولو او د تمرینونو پـه حلولـو کې د زده‌کوونکو لارښوونه.<br>- زده‌کوونکو ته د کورني کار په اړه د موضوع ټاکل. |

۷ـ د متن د ستونزمنو برخو روښانه کول:

ماین: هغه وژونکی توکی دی چې د پټ دښمن په توگه د جنگي ډلو لخوا د یو، بل د له منځه وړلو او مخې نیولو لپاره کارول کېږي.

په ځمکه کې زیات شمېر ښخ شوي چاودېدونکي توکي د باران، واورې او باد له کبله ډېر خطرناک شوي او د انسان له سترگو پټ شوي، ډېر زیات احتیاط غواړي که نه، نو د مرگ او ژوبلې سره به مخ شو.

په کومه سیمه کې چې تگ راتگ کوئ نو د ماینونو نښو ته ځیر اوسئ، بې لارې او بېځایه مه ځئ.

۸ـ ښوونکي ته اضافي معلومات او ماخذونه:

په افغانستان کې د (افغاني هلال احمر د ماینونو د پروگرام تاریخچه او د سره صلیب کمېټه):

په ۱۹۹۴م کال کې د ملگرو ملتو د مالي اوتخنیکي چارو د هماهنگۍ دفتر (UNACHA) د ماینونو د خطرونو څخه د خلکو خبرول پیل کړل. په ۱۹۹۵م کال کې د سره صلیب کمېټې د افغاني هلال احمر څخه ملاتړ اعلان کړ.

په ۲۰۰۲م کال کې د افغاني هلال احمر او د سره صلیب نړیوالو کمېټو په گډه د ماینونو د خطرونو پر ضد یوه واحده او منسجمه اداره جوړه کړه، چې ۷۲ افغاني کارمندان او ۱۴ د سره صلیب کارمندان پکې وگومارل شول. همدارنگه ۱۰۰ سلو تنو رضاکارانو په ۲۵ ولایاتو کې په کار پیل وکړ.

دغه دواړه ارگانونه (افغاني هلال احمر او بین المللي سور صلیب) په گډه زیار باسي چې د ماینونو د

خطرونو او ضررونو پر ضد گټور گامونه پورته کړي.
د ماینونو پر ضد تراوسه پورې ۱۵۲ هېوادونه غړیتوب لري، له ۱۹۹۷م کال نه راپدېخوا ۴۲ ملیونه ذخیره شوي ماینونه تخریب او له منځه وړل شوي دي. د ۱۹۹۰م کال په لومړیو کې له ۵۰ څخه زیاتو ملکونو ماینونه تولیدول چې اوس یې یوازې ۱۳ هېواده پاتې دي او بس.
تراوسه څه ناڅه نیم میلون وګړي د ماین قرباني شوي دي. له نیکه مرغه د ماینونو پر ضد یو بین المللي کمپاین رامنځته شوی چې څه ناڅه (۱۰۰۰) مدني ټولنې پکې برخه لري چې یو شمېر یې د نوبل د جایزې په اخستو بریالي شوي هم دي.
د ماین کارول اوس هم ۷۰ هېوادونه او ۷ قلمروه (سرحدونه) تهدیدوي. د نړۍ ۳۹ ملکونو د روسیې- چین او امریکا په ګډون د ماین د نه کارولو تړون نه دی لاسلیک کړی چې نړۍ او نړیوالو ته لوی خطر دی.
د ماین ډولونه:
د ماینونو لاندې ډولونه او ناچاودي مواد خطرناک دي:
د انسان ضد ماین چې ډېر ډولونه لري.
د ټانګ ضد ماین.
چرې لرونکي ماینونه.
خوشه یي بمونه.
جمپ وهونکي یا فرشي ماینونه.
زرهي او جنګي وسلې.
سپکې او وړې سلاګانې.
د متروکه موادو انبارونه.

ماخذونه:

۱. جهان عاری از ماین (مطبوعاتي خپرونه).
۲. خطرات ماین د (I.C.R.C) خپرونه.

# اتم لوست

## د تدریس د لارښود پلان

**د تدریس وخت: (درې درسي ساعتونه)**

| د مطالبو سرلیکونه | د مطالبو شرحه |
|---|---|
| ۱ـ د لوست موضوع | د امیر شېرعلي خان واکمني اود پښتو ژبې وده |
| ۲ـ د زده کړې (پوهنیزې، مهارتي او ذهنیتي) موخې: | ـ د امیر شېرعلي خان په وخت کې د پښتوژبې د ودې په اړه معلومات تر لاسه کول.<br>ـد امیر شېرعلي خان په وخت کې په پښتو ژبه کې کوم کتابونه خپاره شوي دي؟<br>ـ په لوست کې د گرامري جوړښتونو زده کول.<br>ـ د متن پر مفهوم ځان پوهول.<br>ـ زده‌کوونکي متن په سمه توگه ولوستلی شي او په مفهوم يې ځان پوه کړي.<br>ـ نوي او گران لغتونه زده او معنا کړای شي او په کتابچو کې يې ولیکي. |
| ۳ـ د تدریس لارې: | لوستل او لیکل، پوښتنې او ځوابونه، ډله ییز فعالیتونه، یو کسیز فعالیت. |
| ۴ـ د تدریس وسیلې: | درسي کتاب، توره تخته، تخته پاک، تباشیر، کتابچه او قلم. |
| ۵ـ د ارزونې لارې او وسیلې: | شفاهي ارزونه، عملي کار<br>د لوستلو، لیکلو او ډله ییز کار څارل او پایلې يې په کتابچه کې لیکل |
| ۶ـ د زده کړې او تدریس فعالیتونه: | لومړنی فعالیت: روغبړ، د حال احوال پوښتنه، د حاضرۍ اخیستل، د کورني کار کتنه. |
| | د انگېزې رامنځته کول: د لاندې پوښتنې په کولوسره د انگېزې پیدا کول<br>امیر شېرعلي خان د پښتو ژبې د ودې لپاره کوم کارونه وکړل؟ |

| ۱-۲ د ښوونکي فعالیتونه | د زده‌کوونکو فعالیتونه |
| --- | --- |
| ـ د متن په لوستلو کې د زده‌کوونکو پاملرنه راګرځول چې کتاب ته ځیر وي او سم تلفظ زده کړي.<br>ـ د متن په لوستلو کې د زده‌کوونکو د تېروتنو سمول.<br>ـ هر زده کونکي ته وخت ورکول چې پوښتنو ته ځوابونه ووايي.<br>ـ له زده‌کوونکو څخه د درس په اړه ځینې ګرامري پوښتنې کول.<br>ـ د زده‌کوونکو هڅوونه چې د ټولګي په مخکې خبرې وکړي او د لوست لنډیز ووايي.<br>ـ په ډلو د زده‌کوونکو وېشل او هرې ډلې ته د فعالیت ټاکل.<br>ـ د جملو په بشپړولو او د تمرینونو په حلولو کې د زده‌کوونکو لارښوونه.<br>- ښوونکی زده‌کوونکو ته کورنۍ دنده سپاري. | - زده‌کوونکي لوستلو ته غوږ نیسي او متن ته ځیر وي.<br>- زده‌کوونکي د ښوونکي په مرسته خپلې تېروتنې سموي.<br>- زده‌کوونکي پوښتنو ته ځوابونه وايي.<br>- زده‌کوونکي په متن کې مؤنث، مفرد او جمع نومونه په نښه کوي.<br>- زده‌کوونکي په وار سره د لوست لنډیز په خپلو خبرو کې بیانوي.<br>- زده‌کوونکي په ډله ییزو فعالیتونو کې برخه اخلي.<br>- زده‌کوونکي د جملو تش ځایونه په مناسبو کلمو ډکوي او د کتاب تمرینونه حلوي.<br>- زده‌کوونکي کورنۍ دنده اخلي او په کورونو کې یې بشپړوي. |

۷ـ د متن د ستونزمنو برخو روښانه کول:

شمس النهار: هغه جریده وه چې د امیرشېرعلي خان په وخت کې په کابل کې خپرېده. دا جریده د افغانستان په مطبوعاتي ډګر کې لومړۍ خپرونه وه.

بدر منیر: (ځلېدونکی سپوږمۍ) دا د هغه دیني کتاب نوم دی چې دوست محمد خټک د امیرشېرعلي خان په وخت کې لیکلی و.

پلی: دا انځوریز کتاب قاضي عبدالقادر پېښوري د پلو عسکرو لپاره ژباړلی دی، ۳۸۲مخه لري او بولۍ یې پښتو دي.

بولۍ: چې اوس یې قومانده بولي، پښتو معادله کلمه یې بولۍ ده.

۸ـ ښوونکي ته اضافي معلومات او ماخذونه:

کله چې امیر دوست محمد خان د سالنډۍ له امله په هرات کې ومړ(۱۲۷۸ه= ۱۸۶۱م) او هم هلته د خواجه عبدالله انصار د زیارت تر څنګ ښخ شو، امیر شېرعلي خان چې د هغه زوی او ولیعهد و د ۱۲۷۸هـ ق کال د ذي الحجې په۱۲مه یې خپل امارت اعلان کړ. په دې مهال افغان سید جمال الدین هم ورسره و. امیر شېرعلي خان دوه پلا پاچاهي کړې ده، لومړۍ پلا پنځه کاله (له۱۲۷۸-۱۲۸۳هـ پورې) دویمه پلا(له ۱۲۸۵- ۱۲۹۶هـ ق پورې) دولس کاله.

امیرشېرعلي خان په دویمه پلا پاچاهۍ کې عصري پوځ جوړ کړ،چې په اتو پوځي اډو کې ځای پر ځای و: کابل، جلال اباد، شېراباد، کندهار، کورمه، هرات، میمنه، او بلخ.

د امیر شېرعلي خان په وخت کې دتوپ او ټوپک جوړولو کارخونې (کارخانې) هم جوړې شوې. په هغو کارخونو کې جوړشوي توپونه لاتر اوسه هم شته دي.
د امیر شېرعلي خان په وخت کې پښتو مطبوعاتي ډګر ته راووتله. د لومړي ځل لپاره یې په افغانستان کې د "شمس النهار" په نامه اخبار چاپ او خپور کړ او په کابل کې یې چاپخونې جوړې کړې. امیر شېر علي خان ښوونځي پرانیستل. لومړی ځل یې په افغانستان کې کابینه جوړه کړه او سید نور محمد شاه یې لومړی وزیر وټاکه. په هغې کابینې کې د امیر د کورنۍ له غړو او خپلوانو څخه هیڅوک هم نه وو.
امیر شېرعلي خان د هوتکو له دورې راوروسته تر نورو ټولو پاچاهانو پښتو ژبې او ادب ته زیات خدمت کړی دی. د امیر شېر علي خان په دوره کې ټول عسکري القاب او سرلیکونه پښتو شول، عسکري بولۍ هم په پښتو بدلې او دود شوې. عسکري بولۍ چې د امیر شېرعلي خان په دوره کې پښتو شوې او دود شوې وې، تراوسه هم زموږ په پوځ کې دود دي او ځینې یې دا دي:
تیارسئ، ولاړسئ، درېږ چې درېش یې تلفظ کوي او اصل یې (درېږ) دی، خپور، پروت او ....
د امیر شېرعلي خان په وخت کې ځینې کتابونه په پښتو وژباړل شول او یا ولیکل شول لکه: پلی، بحرالعلوم، روضة المجاهدین، ذخیرة السعادت، مجموعة الخطب، معدن الجواهر، لطافت، معرفة الملوک، اخلاق محمدي، تفسیر بدر منیر، تحفة الامیر، د افغانستان تاریخ، ګلشن امارت اونور.
امیر شېرعلي خان د ۱۲۹۶ هـ ق کال د صفرې په ۲۹مه نېټه د نقرس دناروغۍ له امله مړ او د مزار په روضه کې خاورو ته وسپارل شو.

ماخذونه
۱ـ د پښتو ادبیاتو تاریخ، لرغوني او منځنۍ دوره، زلمی هېواد مل دانش خپرندویه ټولنه، لومړی ټوک، ۱۳۷۹هـ ل کال.
۲- پښتو روزنه، عبدالرؤف بېنوا، د پښتو څېړنو نړیوال مرکز، ۱۳۵۲هـ ل کال.

# نهم لوست

## د تدریس د لارښود پلان

**د تدریس وخت: (درې درسي ساعتونه)**

| د مطالبو سرلیکونه | د مطالبو شرحه |
|---|---|
| ۱ـ د لوست موضوع | نورستان |
| ۲ـ د زده کړې (پوهنیزې، مهارتي او ذهنیتي) موخې: | د نورستان له کلتور سره اشنا یي پیدا کول.<br>د نورستان جغرافیوي موقعیت پېژندل.<br>د نورستان د مرکز پېژندل.<br>د نورستان ولایت او ولسوالیو پېژندل.<br>پرلوست او مفهوم یې پوهېدل.<br>په لوست کې د نوو کلمو پېژندل چې ویې لیکلای شي او معنا یې کړای شي. |
| ۳ـ د تدریس لارې: | لوستل او لیکل، پوښتنې او ځوابونه، ډله ییز فعالیتونه، یو کسیز فعالیت. |
| ۴ـ د تدریس وسیلې: | درسي کتاب، توره تخته، تخته پاک، تباشیر، کتابچه او قلم. |
| ۵ـ د ارزونې لارې او وسیلې: | شفاهي ارزونه، عملي کار<br>د لوستلو، لیکلو او ډله ییز کار څارل او پایلې یې په کتابچه کې لیکل |
| ۶ـ د زده کړې او تدریس فعالیتونه: | لومړنی فعالیت: روغبړ، د حال احوال پوښتنه، د حاضرۍ اخیستل، د کورني کار کتنه |
| | د انگېزې رامنځته کول: د لاندې پوښتنو په کولو سره د انگېزې پیدا کول:<br>نورستان ولایت د افغانستان په کومه خوا کې پروت دی؟<br>د نورستان د څو ولسوالیو نومونه ووایاست؟ |

| ۱-۲ د ښوونکي فعالیتونه | د زده‌کوونکو فعالیتونه |
| --- | --- |
| ـ ښوونکی متن په زده‌کوونکو لولي او د دوی لوستل او سم تلفظ څاري.<br>ـ د متن په لوستلو کې د زده‌کوونکو د تېروتنو سمول.<br>ـ هر زده‌کوونکي ته وخت ورکول چې پوښتنو ته ځوابونه ووايي.<br>ـ له زده‌کوونکو څخه د درس په اړه ځينې ګرامري پوښتنې کول.<br>ـ د زده‌کوونکو هڅونه چې د ټولګي په مخکې خبرې وکړي او د لوست لنډيز ووايي.<br>ـ په ډلو د زده‌کوونکو وېشل او هرې ډلې ته د فعاليت ټاکل.<br>ـ ښوونکی د نورستان په اړه پوښتنې طرحه کوي او هم د تمرينونو په حلولو کې د څلور ځوابه پوښتنو طرحه کول.<br>- د کورنۍ دندې په اړه د موضوع ټاکل. | - زده‌کوونکي متن په مناسب لوړ غږ لولي او د کلمو د سم تلفظ زيار باسي.<br>- د ښوونکي خبرو ته غوږ نيول او خپلې تېروتنې سمول.<br>- زده‌کوونکي پوښتنې ځوابوي.<br>- زده‌کوونکي مفردې کلمې په جمع او جمع په مفردو اړوي.<br>- زده‌کوونکي په وار سره د متن مفهوم په خپلو خبرو کې څرګندوي.<br>- زده‌کوونکي په ډله ييز فعاليت کې برخه اخلي.<br>- زده‌کوونکي د نورستان په اړه پوښتنو ته ځوابونه وايي.<br>- زده‌کوونکي څلور ځوابه پوښتنې ځوابوي او هم د تمرينونو په حلولو کې برخه اخلي.<br>- زده‌کوونکي کورنۍ دنده يادداشت کوي او په کورونو کې يې بشپړوي. |

۷ـ د متن د ستونزمنو برخو روښانه کول:

- په لوی ننګرهار کې کونړ، لغمان، نورستان او پخپله اوسنی ننګرهار شامل و چې يو وخت د مشرقي د اعلی حکومت په نامه يادېده، په دغه وخت کې به ددغو سيمو چارې له ننګرهار څخه اداره کېدې.
- غوزان= چارمغز

مرخنۍ= سنځلې ته ورته يو ډول مېوه ده چې ونه يې غنې (اغزي) لري.

خوړونه= هغه ژور ځايونه چې د واورې او باران اوبه پکې رابهېږي.

ډېر خوړونه دايمي اوبه لري، خو په يو شمېر نورو کې مؤقتې (د واورې او باران) اوبه د يو څه وخت لپاره بهېږي.

۸ـ ښوونکي ته اضافي معلومات او ماخذونه:

نورستان د افغانستان په ختيځ کې پروت ولايت دی. نورستان اوه ولسوالۍ لري چې دا دي: نورګرام، دوآب، منډول، واما، وانت، کامدېش او برګمټال. د نورستان ځينې لوی او مشهور کلي دا دي: ارچڼو، کوردر، پوښال، ګرو، لينر، چتراس، سټيوي، کاټنيوا، پېنکی، اسلام پليټ، کولم، ښوک، پله ګل، کوله تن، ملين، ودوو، وايګل، ژنچيګل، نيشوګرام اونور دي.

نورستان په درې برخو وېشل شوی دی: ختيځ نورستان، لوېديځ نورستان او مرکزي نورستان.

نورستانيان په دوه لويو قبيلو وېشل کېږي چې کته او کلښه نومېږي. کته قبيله تر کلښه لويه ده؛ نو نورستاني ليک لوست هم په کته لهجه دی.

نورستان د امير عبدالرحمن خان تر پېره پورې د کافرستان په نامه يادېده.

ماخذونه:
۱- اطلس قریه های افغانستان،
۲- له سروبي تر اسماره، احمد علي کهزاد ، د عبدالقیوم زاهد مشوانۍ ژباړه، دانش خپرندویه ټولنه، ۱۳۸۳هـ ل کال.
۳- تاج التواریخ، امیر عبدالرحمان خان، د عبدالقیوم زاهد مشوانۍ ژباړه، دانش خپرندویه ټولنه، ۱۳۷۹هـ ل کال.

# لسم لوست

## د تدریس د لارښود پلان

**د تدریس وخت:** (**درې درسي ساعتونه**)

| د مطالبو سرلیکونه | د مطالبو شرحه |
|---|---|
| ۱ـ د لوست موضوع | پوهاند رښتین |
| ۲ـ د زده کړې (پوهنیزې، مهارتي او ذهنیتي) موخې: | ـ د پښتو ادب له معاصرې دورې سره بلدتیا.<br>ـ د پښتو ادب د معاصرې دورې د مشهورو څېرو پېژندل.<br>ـ د پوهاند رښتین له ژوند سره بلدتیا.<br>ـ د لوستلو، لیکلو او خبرو کولو د مهارتونو پیاوړې کول.<br>ـ په متن کې د نوو لغتونو پېژندل او په جملو کې د کارولو د مهارت پیاوړې کول. |
| ۳ـ د تدریس لارې: | لوستل او لیکل، پوښتنې او ځوابونه، ډله ییز فعالیتونه، یو کسیز فعالیت. |
| ۴ـ د تدریس وسیلې: | درسي کتاب، توره تخته، تخته پاک، تباشیر، کتابچه او قلم. |
| ۵ـ د ارزونې لارې او وسیلې: | شفاهي ارزونه، عملي کار<br>د لوستلو، لیکلو او ډله ییز کار څارنه او پایلې یې په کتابچه کې لیکل. |
| ۶ـ د زده کړې او د تدریس فعالیتونه: | لومړنی فعالیت: ستړې مشي، د حال احوال پوښتنه، د حاضرۍ اخیستل، د کورني کار کتنه. |
| | د انګېزې رامنځته کول: د پښتو ادب د معاصرې دورې د پنځو ستورو په اړه پوښتنه کول او ورپسې د پوهاند صدیق الله رښتین په اړه د پوښتنې طرحه کول. |

| ۱-۷ د ښوونکي فعالیتونه | د زده‌کوونکو فعالیتونه |
| --- | --- |
| ـ د متن په لوستلو کې د زده‌کوونکو لارښوونه او د هغو هڅونه چې پوښتنو ته ځوابونه ووايي.<br>ـ ښوونکی د ربښتین د اثارو په اړه معلومات ورکوي او پوښتنې طرحه کوي.<br>ـ هر زده‌کوونکي ته وخت ورکول چې پوښتنو ته ځوابونه ووايي.<br>ـ له زده‌کوونکو څخه د درس په اړه ځینې ګرامري پوښتنې.<br>ـ د زده‌کوونکو هڅونه او تشویق چې د ټولګي په مخکې خبرې وکړي او د لوست لنډيز ووايي.<br>- زده‌کوونکي د شعر لوستلو او معنا کولو ته رابلل.<br>ـ په ډلو د زده‌کوونکو وېشل او هرې ډلې ته د فعالیت ټاکل.<br>ـ ښوونکی د تمرینونو په حلولو کې د زده‌کوونکو لارښوونه کوي. | ـ د متن لوستل او د کتاب پوښتنو ته سم ځوابونه ویل.<br>ـ د ښوونکي خبرو ته غوږ نیول او د خپلو تېروتنو اصلاح کول.<br>ـ د ټولګي کار ترسره کول او پوښتنو ته ځوابونه ویل.<br>- زده‌کوونکي غوږ نیسي او د ربښتین د اثارو په اړه پوښتنې ځوابوي.<br>- زده‌کوونکي د لوست لنډيز په خپلو خبرو کې بیانوي.<br>- زده‌کوونکي په وار سره شعر لولي او معنا کوي يې.<br>- په ډله ییزو فعالیتونو کې برخه اخیستل.<br>- زده‌کوونکي د تمرینونو په حلولو کې برخه اخلي.<br>- زده‌کوونکي کورنۍ دنده اخلي او په کور کې يې بشپړوي. |

۷ـ د متن د ستونزمنو برخو روښانه کول:

معاصر ادبیات: په افغانستان کې د شلمې مېلادي پېړۍ په راتګ سره پیل کېږي او تر نن ورځې رارسېږي. په شلمه پېړۍ کې په افغانستان کې ځینې بدلونونه رامنځته شول چې په ادبي او فرهنګي چارو يې اغېز وکړ لکه د سراج الاخبار خپرېدل پیل شول، ښوونځي جوړ شول، ادبي ټولنې جوړې شوې دا هغه څه وو چې په ادبیاتو يې خپل اغېز وښنده او يو نوښت پکې رامنځته شو.

ادیب: هغه لیکوال دی چې په ادبي ډګر کې پوهه او معلومات ولري، د آثارو څښتن وي او د ادب په برخه کې مطالعه ولري.

د ادبیاتو تاریخ: د تاریخ په بېلابېلو وختونو کې د یوې ژبې د ادب وده، پراختیا، بدلون او پرمختیا څېړي.

هنري نثر: هنري یا ادبي نثر هغه دی چې لیکوال پکې د خپل تخیل نه کار واخلي، ښکلي کلمات، ښکلي ترکیبونه او تشبیهات وکاروي، ترسیم او بیان يې اغېزناک وي.

پښتو اشتقاقونه: له مصدر څخه د نوو کلماتو جوړول.

سانسکریټ: یوه لرغونې ژبه وه ، د ژبو په اندو اریايي کورنۍ پورې يې اړه درلوده. تر اوسه يې ډېر لغتونه په اندو اریايي ژبو کې کارېږي. د پخوانۍ زمانې متنونه يې هم راپاتې دي. اوس هم په هند کې دسانسکریټ ژبې تدریس کېږي او ځینې کسان په ځانګړي ډول د دغې ژبې زده کړې کوي.

۸ـ ښوونکي ته اضافي معلومات او ماخذونه:
پوهاند صديق الله رښتين د مولوي تاج محمد خان زوی، په ۱۲۹۸ هـ ل کال د مومندو په سره کمر کې زېږېدلی دی. لومړنۍ زده کړې يې پخپله علمي کورنۍ کې کړې دي نورې زده کړې يې د ننګرهار د هډې په نجم المدارس او د کابل په عربي دارالعلوم کې سرته رسولي دي.
پوهاند رښتين له ۱۳۲۵ ل هـ کال څخه راپدېخوا د ادبياتو په پوهنځي کې تدريسي چارې پرمخ بيولي دي او د استادۍ درنه او مقدسه دنده يې ترسره کړې ده. نوموړی په ۱۳۳۵ هـ ش کال د وزارت د مشاور په توګه وټاکل شو. هغه د زياتو اثارو د ليکلو او د استادۍ د درانه مقام له مخې لومړی د پوهنوال او بيا په ۱۳۴۰ هـ ش کال کې د پوهاند لوړې علمي رتبې ته ورسېد. پوهاند رښتين په ۱۳۴۲ هـ ش کال په دوهم ځل د پښتو ټولنې د رئيس په توګه مقرر شو. او لس (۱۰) کاله يې دغه دنده پرمخ بوتله. ددې تر څنګ د ادبياتو په پوهنځي کې هم استاد و چې ګرامر، اشتقاق، د ليکوالۍ متون او ادب تاريخ درسونه يې ورکړي دي او مسلکي شاګردان يې روزلي دي.
پوهاند رښتين په ډېرو سختو شرايطو کې په ۱۳۲۱هـ ل کال په ګرد يز کې د (وړانګې) په نامه او په ۱۳۲۲ هـ ل کال کې په فراه کې د (سيستان) په نامه د اخبارونو لومړنۍ ګڼې راوويستلې او دغلته يې په لومړي ځل چاپخانې په کار واچولې. نوموړي څه موده د (هېواد) اخبار او د کابل مجله هم چلولې ده.
پوهاند رښتين د مطبوعاتي او ادبي ليکنو تر څنګ ډېر ليکوالان او ځلميان له ليکوالۍ سره اشنا کړي دي. هغه غوښتل چې پښتو ليکنه بايد تشه جذباتي ليکنه نه وي، بلکې د علم، منطق او تاريخ په رڼا کې پرمخ لاړه شي.
د پوهاند رښتين ليکنې ډېرو داخلي او خارجي پوهانو ستايلي دي چې له هغو څخه يو يې د هېواد نوميالی ليکوال حبيب الله تږی دی. هغه په (معاصر افغاني ادب) کې ليکي:
رښتين د خپل وخت نوميالی ليکوال او قوي نثر ليکونکی دی نظم او نثر دواړه لري خو نثر يې تر نظم ډېر قوي او پوخ دی. د (هند سفر) يې شهکار او يو قيمتي اثر دی.
پوهاند رښتين ډېر کتابونه ژباړلي هم دي چې (د مينې هنداره) يې ډېر ښه مستقل اثر دی. شوروي ختيځ پوه (ګيرس) هم د پوهاند رښتين په باب وايي چې دی په پښتو نثر کې د بديع او هنري اثر څښتن دی. دده د (هند سفر) يو په زړه پورې اثر دی.
پوهاند رښتين ۹۱ کتابونه ليکلي دي او د ډېرو ارزښتناکو خدمتونو وروسته په ۱۳۷۷ هـ ل کال کې وفات شوی دی او د ننګرهار په بهسودو کې خاورو ته سپارل شوی دی.

منابع او ماخذونه:
۱ـ ډاکټر زيور الدين زيور، د پښتو ادبياتو تاريخ، اوسنۍ دوره، دويم چاپ، ۱۳۸۷ هـ ل کال.
۲- اوسني ليکوال، عبدالروف بېنوا.

# یوولسم لوست

**د تدریس د لارښود پلان**

**د تدریس وخت: (درې درسي ساعتونه)**

| د مطالبو سرلیکونه | د مطالبو شرحه |
| --- | --- |
| ۱ـ د لوست موضوع | لاسي صنایع |
| ۲ـ د زده کړې (پوهنیزې، مهارتي او ذهنیتي)موخې: | ـ د لاسي صنایعو پېژندل<br>ـ د لاسي صنایعو د ګټو پېژندل.<br>ـ د ګرامري برخې، لکه د نوم پېژندل<br>مختلف لاسي صنایع، لکه خاورین لوښي، ګنډلي شیان (خامک، ګلدوزي) وریښمین شیان او د نورو پېژندل.<br>ـ د افغانستان د مختلفو سیمو لاسي صنایع پېژندل.<br>ـ د لاسي صنایعو د لرغونتوب په هکله معلومات تر لاسه کول.<br>ـ په کلتوري او اقتصادي لحاظ د لاسي صنایعو د ګټو پېژندل.<br>ـ د لوستلو او لیکلو د مهارت پیاوړي کول.<br>ـ جمله جوړونه او په جمله کې د نوو لغتونو د استعمال د مهارت پیاوړي کول.<br>ـ په متن کې د خاص نوم او عام نومونو پېژندل. |
| ۳ـ د تدریس لارې: | لوستل او لیکل، پوښتنې او ځوابونه، ډله ییز فعالیتونه، یو کسیز فعالیت. |
| ۴ـ د تدریس وسیلې: | درسي کتاب، توره تخته، تخته پاک، تباشیر، کتابچه او قلم. |
| ۵ـ د ارزونې لارې او وسیلې: | شفاهي ارزونه، عملي کار<br>په کتابچه او یا جدول کې د لوستلو، لیکلو او ډله ییز کار د څارنې او د پایلو لیکل. |
| ۶ـ د زده کړې او تدریس فعالیتونه: | لومړنی فعالیت:<br>روغبړ، د حال احوال پوښتنه، د حاضرۍ اخیستل، د کورني کار کتنه |
| | د انګېزې رامنځته کول:<br>ښوونکی دې په تخته باندې پوښتنه ولیکي چې: لاسي صنایع څه ته وایي.<br>شاګردان دې پرې خبرې وکړي او مثالونه دې ووايي. |

| ۱-۲ د ښوونکي فعالیتونه | د زده‌کوونکو فعالیتونه |
|---|---|
| ـ د متن په لوستلو کې د زده‌کوونکو لارښوونه، د هغو تشویق او هڅونه چې د لاسي صنایعو په ارزښت وغږېږي.<br>ـ د متن په لوستلو کې د زده‌کوونکو د تېروتنو سمول.<br>ـ هر زده‌کوونکي ته وخت ورکول چې پوښتنو ته ځوابونه ووايي.<br>ـ له زده‌کوونکو څخه د درس په اړه ځینې ګرامري پوښتنې.<br>ـ د زده‌کوونکو هڅونه او تشویق چې د ټولګي په مخکې خبرې وکړي او د لوست لنډیز ووايي.<br>ـ په ډلو د زده‌کوونکو وېشل او هرې ډلې ته د فعالیت ټاکل.<br>- ښوونکی د تمرینونو په حلولو کې د زده‌کوونکو لارښوونه کوي.<br>- ښوونکی کورنۍ دنده ټاکي. | - د متن سم لوستل او د لاسي صنایعو په ارزښت خبرې کول.<br>- د ښوونکي خبرو ته غوږ نیول او د خپلو تېروتنو سمول.<br>- زده‌کوونکي پوښتنې ځوابوي.<br>- زده‌کوونکي په متن کې عام او خاص نومونه پیدا کوي او پوښتنو ته ځوابونه ورکوي.<br>- زده‌کوونکي د لاسي صنایعو په ارزښت، ډولونو او د جوړېدو د ځایونو په اړه خبرې کوي.<br>- زده‌کوونکي په ډله ییزو فعالیتونو کې برخه اخلي.<br>- زده‌کوونکي د ښوونکي د لارښوونې سره سم تمرینونه حلوي.<br>- زده‌کوونکي کورنۍ دنده اخلي او په کورونو کې یې بشپړوي. |

۷ـ د متن ستونزمنو برخو روښانه کول:
لاسي صنایع په لاس جوړ شوي شیان دي چې موږ ترې کار اخلو دغه لاسي صنایع چې تاسو یې په ښکلو شکلونو کې وینئ په لرغونو زمانو کې په ډېر ساده شکل جوړېدل چې د وخت په تېرېدو یې پرمختګ وکړ او لا هم د پرمختیا په لور روان دي.
که څه هم پخواني لاسي صنایع د شکل له مخې ظریف او نفیس نه ښکاري، خو د کیفیت له مخې ډېر لوړ ارزښت لري؛ ځکه خو یې په موزیمونو کې ساتي. لاسي صنایع که پخواني (لرغوني) دي او که اوسني د یوه هېواد د کلتور او هویت ښکارندويي کوي.

۸ـ ښوونکي ته اضافي معلومات او ماخذونه:
ـ لاسي صنایع: لاسي صنایع هغه شیان دي چې له خامو موادو څخه په لاس جوړ شوي او ښکلي شوي وي، لکه خاورین لوښي، ډبرین لوښي، ځینې فلزي لوښي چې اهنګران یې جوړوي، ګاڼې چې زرګران یې جوړوي او داسې نور.
د مزرو او لرګیو څخه په لاس باندې ځینې شیان جوړول، لکه: دروازې، کړکۍ، ټوکرۍ او نور
همدارنګه له وریښمو او سونډو څخه ځینې شیان جوړول او په نتیجه کې ټول هغه شیان چې د انسان په لاسونو جوړېږي او له ماشینه پکې کار نه اخیستل کېږي لاسي صنایع ورته ویل کېږي، چې لاسي ګنډل، خامک، ګنډونه او نور هم پکې راځي.
ـ اقتصادي ارزښت یې دا دې چې له دغې لارې نه په ځانګړې توګه د خلکو اقتصاد او په عمومي توګه د هېواد اقتصاد ته هم ګټه رسیږي.
ـ کلتوري ارزښت یې په دې کې دی چې د هېواد د کلتور نماینده ګي کوي.

ـ د لرغونتوب په لحاظ هم ارزښت لري، ځکه چې د هېواد د لرغونو دودونو او تېر تاريخ ښه ترېنه هم څرګند ېږي.
تر کرنې وروسته په ضروري او د کار ور توکو باندې د لومړنيو او خامو موادو را اړول د انسانانو دويم شغل، کار او کسب و، کله چې انسان په لومړنيو لاسي صنايعو پيل وکړ، له هغه راهيسې ډېر کلونه تېر شوي دي. دغه وخت انسان يو شمېر ژوي لکه پسونه، سپي، پيشو او غوايي اهلي (په کور کې اموخته) کړي وو.
دوی په دې وخت کې اړ وو، چې د کرنې او مالدارۍ تر څنګ يو شمېر وسايل لکه يوم (بيل)، تبر، څمڅۍ، ييوه، جغ او نور شيان ولري، همدارنګه په کور کې يې يو شمېر نورو وسايلو ته اړتيا پيدا کړه، د ډېرو ساده وسايلو په جوړولو يې پيل وکړ. له ډېرو کلو وروسته يې د اوسپنې ويلې کول هم زده کړل. له دې مخکې يې له هډوکو او تيږو څخه شيان جوړول. دا يې د ژوند لومړنی پړاو و.
له دې وروسته يې مس او قلعي سره ګډ کړل، دا يې د ژوند يو بل پړاو ګڼل کېده. ددغه کشف له مخې يې وکړای شول چې له اوسپنې څخه ښه، ښه وسايل جوړ کړي چې په نتيجه کې يې لومړني صنعتګران رامنځته شول او لاسي صنايعو وده وموندله.
په هغه وخت کې د لاسي صنايعو توليدات ساده لوښي، چاقوګان، لور، غشي، يوم او ځينې ساده ګاڼې او نور وو دغه ډول صنايع اوس هم په يو شمېر هېوادو کې شته چې ځينې يې تر ماشيني صنايعو ډېر ګران او ارزښتناک هم دي.
ماشيني صنايع د اتلسمې پېړۍ په پای او د نولسمې پېړۍ په پيل کې په اروپا کې رامنځته شوې، د لومړي ځل لپاره په انګلستان کې د بخار (براس) ماشين رامنځته شو چې همدا ماشين په حقيقت کې د صنعتي انقلاب پيل و.


ماخذونه او منابع:
۱ـ په افغانستان کې صنايع او په ملي اقتصاد کې د هغو ونډه، پوهنوال محمد بشير دوديال، د اريک ګرځنده کتابتونونو اداره، ۱۳۸۲هـ . ش . کال
۲ـ د افغانستان لاسي صنايع، پوهنمل محمد عالم، د اريک ګرځنده کتابتونو اداره.
۳ـ د افغانستان صنعتي جغرافيه، پوهاند غلام جيلاني عارض، د ادبياتو پوهنځي خپرونه
۴ـ اريانا دايرة المعارف، د اريانا افغان دايرة المعارف خپرونه.

# دولسم لوست

## د تدریس د لارښود پلان

### د تدریس وخت: (درې درسي ساعتونه)

| د مطالبو سرلیکونه | د مطالبو شرحه |
|---|---|
| ۱ـ د لوست موضوع | مرکه د پښتو |
| ۲ـ د زده کړې (پوهنیزې، مهارتي او ذهنیتي)موخې: | ـ مرکه د پښتو پېژندل<br>ـ د ځینو گرامري برخو، لکه د خاص نوم پېژندل<br>ـ مرکه د پښتو له کارونو سره اشنایي پیداکول<br>ـ د پښتو مرکې د جوړېدو د تاریخ او غړو په اړه معلومات تر لاسه کول<br>ـ په متن کې د نوو لغتونو پېژندل<br>ـ د جملو جوړولو د مهارت پیاوړي کول<br>ـ د لوستلو د مهارت پیاوړي کول |
| ۳ـ د تدریس لارې: | لوستل او لیکل، پوښتنې او ځوابونه، ډله ییز فعالیتونه، یو کسیز فعالیت. |
| ۴ـ د تدریس وسیلې: | درسي کتاب، توره تخته، تخته پاک، تباشیر، کتابچه او قلم. |
| ۵ـ د ارزونې لارې او وسیلې: | شفاهي ارزونه، عملي کار<br>په کتابچه او یا جدول کې د لوستلو، لیکلو او ډله ییز کار د څارنې د پایلو لیکل. |
| ۶ـ د زده کړې او تدریس فعالیتونه: | لومړنی فعالیت: روغبړ، د حال احوال پوښتنه، د حاضرۍ اخیستل، د کورني کار کتنه. |
| | د انگېزې رامنځته کول: ښوونکی دې د امان الله خان په وخت کې د پښتو ژبې د څرنگوالي په اړه پوښتنه طرح کړي او زده کوونکي دې په خبرو او بحث کې گډون وکړي چې اصل موضوع ته راشي. |

| د زده‌کوونکو فعالیتونه | ۶-۱ د ښوونکي فعالیتونه |
|---|---|
| - د متن لوستل په چوپه خوله او د متن مفهوم پخپلو خبرو کې څرګندول.<br>- زده‌کوونکي متن په لوړ غږ لولي او د ښوونکي په مرسته خپلې تېروتنې سموي.<br>- زده‌کوونکي د پوښتنو په ځوابولو کې برخه اخلي.<br>- زده‌کوونکي په متن کې خاص نومونه په نښه کوي او بيا يې د ټولګي په وړاندې لولي.<br>- زده‌کوونکي په وار سره د لوست لنډيز د ټولګي په وړاندې پخپلو خبرو کې وايي.<br>- زده‌کوونکي په ډله ييزو فعالیتونو کې برخه اخلي.<br>- زده‌کوونکي د تمرينونو په حلولو کې برخه اخلي او پوښتنې ځوابوي.<br>- زده‌کوونکي په کورنۍ دنده ځانونه پوهوي، بيا يې ياداشت کوي او په کورونو کې يې حلوي. | - ښوونکی دې زده‌کوونکي وهڅوي چې متن په چوپه خوله ولولي او بيا دې مفهوم په خپلو خبرو کې څرګند کړي.<br>ـ د متن په لوستلو کې د زده‌کوونکو د تېروتنو سمول.<br>ـ هر زده‌کوونکي ته وخت ورکول چې پوښتنو ته ځوابونه ووايي.<br>لـه زده‌کوونکوڅخـه د درس پـه اړه ځينـې ګرامري پوښتنې کول.<br>ـ د زده‌کوونکو هڅونه چې د ټولګي په مخکې خبرې وکړي او د لوست لنډيز ووايي.<br>ـ په ډلو د زده‌کوونکو وېشل او هرې ډلې ته د فعاليت ټاکل.<br>ـ د تمرينونو په حلولو او د پوښتنو په ځوابولو کې د زده‌کوونکو لارښوونه.<br>- ښوونکی زده‌کوونکو ته د کورنۍ دندې سپارښتنه کوي. |

۷ـ د متن د ستونزمنو برخو روښانه کول:

ـ پښتو مرکه په ۱۳۰۱ هـ . ش . کال د امان الله خان د واکمنۍ پروخت جوړه شوه.

ـ پښتو مرکې دوه کتابونه "يوازينۍ پښتو" او "د پښتو پښويه" خپاره کړل او خلکو ته يې د پښتو د لغاتو د راټولولو او مرکې ته د سپارلو اعلان وکړ.

- د پښتو مرکې له جوړيدو څخه د مخه د امير شير علي خان په وخت کې ځينې کتابونه په پښتو ترجمه شول. عسکري بولۍ په پښتو اړول شوې. د امير حبيب الله خان په وخت کې په سراج الاخبار کې پښتو خپرونې پيل شوې اوهم په حبيبيه ښوونځي کې د پښتو ژبې تدريس پيل شو.

۸ـ ښوونکي ته اضافي معلومات او ماخذونه:

نظامنامې:

د غازي امان الله خان په وخت کې چې کوم قوانين تصويب او خپرېدل، هغو ته يې نظامنامې ويلې چې د اساسي قانون اوفرعي قوانينو بڼه يې درلوده.

طلوع افغان:

د طلوع افغان اخبار د امان الله خان په وخت کې په ۱۹۲۱ (۱۳۰۰ هـ ل کال) په خپرونو پيل وکړ. عبدالحی حبيبي يې مرستيال و چې بيا په ۱۳۱۰ هـ ل کال کې د دغه اخبار مدير شو. په دغه اخبار کې پښتو او دري مطالب خپرېدل. وروسته بيا دغه اخبار په بشپړ ډول پښتو شو.

يوازينۍ پښتو:

د پښتو مرکې له خوا ليکل شوی کتاب و چې پښتو لغتونه، جملې او عبارتونه پکې راغلي دي.

پښتو پښويه:
دا يو گرامري کتاب و چې د پښتو د زده کړې لپاره د پښتو مرکې د ډلې له خوا ليکل شوی و.
د امير شېر علي خان په دوره کې چې د پښتو ژبې د ودې لپاره کوم خوځښت پيل شوی و، د امير عبدالرحمن خان، حبيب الله خان او غازي امان الله خان په دورو کې يې هم اغېز جوت و. د امير عبدالرحمن خان په دوره کې هم ځينې پښتو رسالې چاپ شوې او نصيحت نامه وليکل شوه. د حبيب الله خان په دوره کې پښتو د ښوونځيو په درسي نصاب کې شامله شوه او مولوي صالح محمد کندهاري د پښتو درسي کتابونه وليکل. په دې دورې کې هم ځينې نورې رسالې په پښتو خپرې شوې.
د غازي امان الله خان په دوره کې دغه خوځښت نور هم چټک شو. "مرکه د پښتو" جوړه شوه او په منظم ډول يې دپښتو ژبې د ادبي او علمي پرمختگ لپاره کار پيل کړ. دغې مرکې د رئيس او مرستيال په گډون ۱۲ کسه غړي درلودل چې دا وو: د مرکه د پښتو مشر عبدالواسع اخونزاده، د مرکې مرستيال او بيا مشر عبدالرحمن لودين، ملا محمد زمان خان (د محمود طرزي ورور) ملا محمد خان ساپی، عبدالوهاب خان کاموي، عبدالواحد خان لکنخېل، عبدالکريم خان دولت شاهي، احمدگل خان سلېمانخېل، غلام قادر خان کندهاري، الله ويردي خان وردگ، مير عالم خان مروت او ملا محمد امين خان خوږياڼی.
مولوي عبدالواسع:
مولوي عبدالواسع اخونزاده دمولوي عبدالرؤف کاکړ زوی او په ۱۲۳۷هش کې په کندهار کې زېږېدلی دی. مولوي عبدالواسع ډېرنوميالی عالم و، په پښتو اودري يې شعر هم وايه. ډېر کتابونه يې کښلي لکه: تمسک القضاة الامانية، حکمت اسلامي، د بقرې سورت تفسير، کليات و اصطلاحات فقهيه، شناخت خدا او نور. ځينې کتابونه يې لاهغه مهال چاپ شوي وو.
عبدالرحمن لودين:
عبدالرحمن لودين د سيد احمد خان زوی و. په حبيبيه ښوونځي کې يې تر رشديه درجې پورې زده کړې کړې وې. په عربي، اردو، ترکي او انگليسي ژبو کې يې ښه مطالعه درلوده، د پښتو او دري پوخ ليکوال و. لودين شعر هم وايه. د مشروطه غوښتونکو له ډلې څخه و، د امان الله خان په وخت کې په ښلابېلو دولتي دندو بوخت و. پر امير حبيب الله خان د تمانچې د بريد په تور زنداني شو؛ خو د امير حبيب الله تر مرگ وروسته امان الله خان له زندان څخه راويست. لودين په ۱۳۰۲هـ ل کې د مرکه د پښتو رئيس شو او وريسې د امان الله خان د حضور منشي شو. په ۱۳۰۴هـ ل کې د کندهار لومړی ښاروال وټاکل شو او په ۱۳۰۷هـ ل کال د گمرک رئيس شو. د نادر شاه په واکمنۍ کې د هغه په امر ووژل شو.

**ماخذونه:**


۱ـ پښتو روزنه، عبدالرؤف بېنوا، د پښتو څېړنو نړيوال مرکز، ۱۳۵۷هـ ل کال.
۲ـ پښتو ژبپالنه، حبيب الله رفيع.
۳ـ په دوو وروستيو پېړيو کې پښتو چاپي آثار (د سيمنار د مقالو مجموعه) د چاپ کال ۱۳۵۲ هـ ل کال
۴ـ د پښتو ادبياتو تاريخ، لرغوني او منځنۍ دوره، زلمی هېواد مل دانش خپرندويه ټولنه، لومړی ټوک، ۱۳۷۹هـ ل کال.

# دیارلسم لوست

## د تدریس د لارښود پلان

## د تدریس وخت: (درې درسي ساعتونه)

| د مطالبو سرليکونه | د مطالبو شرحه |
|---|---|
| ۱ـ د لوست موضوع | نومځري (ضميرونه) |
| ۲ـ د زده کړې (پوهنيزې، مهارتي او ذهنيتي)موخې: | ـ ژبه په سمه توگه زده کول.<br>ـ د سمې ليکنې او لوستنې د مهارت پياوړتيا.<br>ـ د نومځرو پېژندنه، پر اهميت يې پوهېدل.<br>ـ د نومځرو د کارونې ځايونه پېژندل.<br>ـ د نومځرو پرگردان پوهېدل.<br>ـ د نومځرو ډولونه پېژندل.<br>ـ په وينا او ليکنه کې د نومځرو سمه کارونه. |
| ۳ـ د تدريس لارې: | لوستل او ليکل، پوښتنې او ځوابونه، ډله ييز فعاليتونه، يو کسيز فعاليت. |
| ۴ـ د تدريس وسيلې: | درسي کتاب، توره تخته، تخته پاک، تباشير، کتابچه او قلم. |
| ۵ـ د ارزونې لارې او وسيلې: | شفاهي ارزونه، عملي کار<br>د لوستلو، ليکلو او ډله ييز کار ځارل او پايلې يې په کتابچه کې ليکل |
| ۶ـ د زده کړې او تدريس فعاليتونه: | لومړنی فعاليت:<br>روغبړ، د حال احوال پوښتنه، د حاضرۍ اخيستل، د کورني کار کتنه. |
| | د انگېزې رامنځته کول: له لاندې جملو څخه دې د نومځرو په اړه پوښتنه وشي:<br>لکه: هغه راته وويل: زه تللی وم، ته راغلی وې.<br>زده‌کوونکي دې ځواب ووايي چې په پورته جملو کې نومځری کوم دی؟ يا په پورته جملو کې هغه، زه، ته څه ډول کلمې دي. |

| ۱-۷ د ښوونکي فعالیتونه | د زده‌کوونکو فعالیتونه |
|---|---|
| ـ د متن په لوستلو کې د زده‌کوونکو لارښوونه او د هغو هڅونه چې پوښتنو ته ځوابونه ووایي.<br>ـ د متن په لوستلو کې د زده‌کوونکو د تېروتنو سمول.<br>ـ هر زده‌کوونکي ته وخت ورکول چې پوښتنو ته ځوابونه ووايي.<br>ـ له زده‌کوونکو څخه د نومځرو د کارونې په اړه پوښتنې کول.<br>ـ د زده‌کوونکو هڅونه چې د ټولګي په مخکې خبرې وکړي او نومځري په جملو کې استعمال کړي.<br>ـ په ډلو د زده‌کوونکو وېشل او هرې ډلې ته د فعالیت ټاکل.<br>ـ د زده‌کوونکو هڅونه او لارښوونه چې په جملو کې ضمیرونه پیدا کړي.<br>- ښوونکی د کورنۍ دندې په اړه معلومات ورکوي. | ـ د متن لوستل او د کتاب پوښتنو ته سم ځوابونه ویل.<br>ـ د ښوونکي خبرو ته غوږ نیول او خپلې تېروتنې سمول.<br>ـ د ټولګي د کار تر سره کول.<br>ـ زده‌کوونکي د ضمیرونو د کارونې په اړه خپل معلومات او مثالونه وړاندې کوي.<br>- زده‌کوونکي د ټولګي په مخکې خبرې کوي او ضمیرونه په جملو کې استعمالوي.<br>- په ډله ییزو فعالیتونو کې برخه اخیستل.<br>- زده‌کوونکي په جملو کې ضمیرونه مشخص کوي.<br>- زده‌کوونکي غوږ نیسي د کورنۍ دندې موضوع یاداشت کوي او په کورونو کې یې بشپړوي. |

۷ـ د متن د ستونزمنو برخو روښانه کول:

ځانګړي یا شخصي نومځري په دوه ډوله دي: غښتلي او کمزوري.

غښتلي: په یوازې توګه کارېږي او خپلواکه معنا لري، لکه:

زه ښوونځي ته تللی وم.

ته جومات ته تللی وې.

هغې ښځې ماته وویل.

هغه سړي مڼه وخوړه.

کمزوري: خپلواکه معنا نه لري له نامه سره چې وکارېږي خپله معنا څرګندوي، لکه:

چرګه مې مړه شوه.

چاقو دې واخله.

کتاب مې راکړه.

زه (ځانګړی، غښتلی، مفرد، اصلي حالت، متکلم) ته (ځانګړی، غښتلی، مفرد، اصلي حالت، مخاطب)

ستا (ملکي) هغه (ځانګړی، غښتلی، نارینه، اصلي)

مې (ځانګړی، کمزوری، مفرد، متکلم) یې (ځانګړی، کمزوری، مفرد، جمع، غایب)

۸ـ ښوونکي ته اضافي معلومات او ماخذونه:

جنس: لکه هلک، نجلۍ، سړی، ښځه او نور.

حالت: د ځانګړو ضمیرونو مفرده بڼه دوه حالته لري، اصلي بڼه او اووښتې بڼه.
شخص: متکلم (لومړی)، مخاطب (دویم)، غایب (دریم).
نومځری: دا یوه ترکیبي کلمه ده، دوه جزه لري (نوم او ځری) نوم اسم ته وایي او ځری استازي ته وایي چې معنا یې ده (د نامه استازی)، یعنې د نامه پرځای کارېږي او ضمیرونه هم ورته وایي.

ماخذونه:

۱_ پښتو غږ پوهنه او ویي پوهنه، پوهنوال محمد صابر خوېشکی، د افغانستان د کلتوري ودې ټولنه _ جرمني، ۱۳۸۰هـ ل کال.
۲_ پښتو پښویه (پښتو ګرامر)، مجاور احمد زیار، دانش خپرندویه ټولنه، ۱۳۸۲هـ ل کال.
۳- پښتو ګرامر، پوهاند صدیق الله رښتین، د سید محي الدین هاشمي ژباړه، یونیورستي بک ایجنسي، ۱۳۷۲ هـ ل کال.
۴- د پښتو ژبې لنډ ګرامر، سید محي الدین هاشمي، د اریک د ګرځنده کتابتونو اداره، ۱۳۸۳هـ ل کال.

# څوارلسم لوست

## د تدریس د لارښود پلان

## د تدریس وخت: (درې درسي ساعتونه)

| د مطالبو سرلیکونه | د مطالبو شرحه |
|---|---|
| ۱ـ د لوست موضوع | لیک نښې |
| ۲ـ د زده کړې (پوهنيزې، مهارتي او ذهنيتي) موخې: | ـ د لیک نښو پېژندل<br>ـ په لیکنه کې د لیک نښو کارول او مراعاتول.<br>ـ په لیکنه کې د ټکي د کارولو د ځای پېژندل<br>ـ په لیکنه کې د ندايي کارولو د ځای پېژندل<br>ـ د کامې پېژندل او استعمال يې<br>ـ د شارحې پېژندل او استعمال يې<br>ـ د وړو لينديو پېژندل او استعمال يې<br>ـ د بيلنۍ (-) پېژندل او استعمال يې<br>ـ په لوستلو او لیکلو کې د لیک نښو په نظر کې نیول.<br>ـ د لیک نښو په اړه د تمرين حلول. |
| ۳ـ د تدریس لارې: | لوستل او لیکل، پوښتنې او ځوابونه، ډله ییز فعالیتونه، يو کسيز فعالیت. |
| ۴ـ د تدریس وسیلې: | درسي کتاب، توره تخته، تخته پاک، تباشیر، کتابچه او قلم. |
| ۵ـ د ارزونې لارې او وسیلې: | شفاهي ارزونه، عملي کار<br>د لوستلو، لیکلو او ډله ییز کار څارل او پايلې يې په کتابچه کې لیکل |
| ۶ـ د زده کړې او تدریس فعالیتونه: | لومړنی فعالیت:<br>روغبړ، د حال احوال پوښتنه، د حاضرۍ اخیستل، د کورني کار کتنه |
| | د انگېزې رامنځته کول:<br>ښوونکی دې په تخته باندې یوه سواليه جمله بې له علامې وليکي لکه: ولې درس نه وايې زده کوونکي دې ځواب ووايي، خبرې او بحث دې پرې وکړي. |

| ۱-۲ د ښوونکي فعالیتونه | د زده‌کوونکو فعالیتونه |
| --- | --- |
| ـ د متن په لوستلو کې د زده‌کوونکو لارښوونه او د هغو تشویق او هڅونه چې لیک نښې وپېژني.<br>ـ د متن په لوستلو کې د زده‌کوونکو د تېروتنو سمول.<br>ـ هر زده‌کوونکي ته وخت ورکول چې پوښتنو ته ځوابونه ووايي.<br>ـ له زده‌کوونکو څخه د درس په اړه پوښتنې کول چې په متن کې راغلې لیک نښې په وار سره تعریف کړي.<br>ـ د زده‌کوونکو هڅونه او تشویق چې د ټولګي په مخکې خبرې وکړي او د لوست لنډیز ووايي.<br>ـ په ډلو د زده‌کوونکو وېشل او هرې ډلې ته د فعالیت ټاکل.<br>ـ په عملي توګه د لیک نښو کارول او د تمرینونو په حلولو کې د زده‌کوونکو لارښوونه.<br>- ښوونکی کورنۍ دنده سپاري. | - د متن لوستل او د لیک نښو په کارولو باندې ځانونه پوهول.<br>- د ښوونکي خبرو ته غوږ نیول او د خپلو لوستلو نیمګړتیاوې سمول.<br>- د ټولګي د کار ترسره کول.<br>- زده‌کوونکي په ورکړل شویو متنونو کې لیک نښې پیدا کوي او پېژندنه یې نورو ته څرګندوي.<br>- زده‌کوونکي د لوست لنډیز په خپلو خبرو کې وايي.<br>- زده‌کوونکي په ډله ییزو فعالیتونو کې برخه اخلي.<br>- زده‌کوونکي په یو متن کې لیک نښې کاروي او هم د تمرینونو په حل کې برخه اخلي.<br>- زده‌کوونکي په کورنۍ دنده ځان پوهوي او په کورونو کې یې بشپړوي. |

۷ـ د متن د ستونزمنو برخو روښانه کول:

علامه سید جمال الدین افغان د سید صفدر زوی د کونړ ولایت د اسعد آباد په سیمه کې د ۱۳۵۴ هـ کال په شعبان کې چې د ۱۸۳۸م کال له اکتوبر سره سمون خوري زېږېدلی و. د سید جمال الدین پلار سید صفدر د امیر دوست محمد خان د پاچاهۍ په وخت کې لس کاله له خپلې کورنۍ سره په کابل کې و، هغه تر ۱۸ کلنۍ پورې ټول مروجه علوم زده کړل، په عربي، دري، اردو، انګرېزي، روسي، فرانسوي او ترکي ژبو یې زده کړې کړې وې او د خپل وخت لوی عالم و.

۸ـ ښوونکي ته اضافي معلومات او ماخذونه:
که لیک نښې ونه کارول شي په لیکنه او لوستنه کې تېروتنې رامنځته کېږي. که په لیکنه کې د لیک نښو مراعات ونه شي لیکنه په انشايي او املايي لحاظ بشپړه نه وي. لیک نښې د املاء یوه برخه ده. باید په پام کې ونیول شي.
دادی یو شمېر نورې هغه لیک نښې چې د لوست په متن کې نشته د ښوونکي د معلوماتو لپاره په لاندې ډول راوړوو:
سیمي کولن (؛) یا ځنډکی: دا نښه له کامې (،) نه زیاته وقفه راولي او په دې ډول کارېږي:
زه له چا سره بد نه کوم؛ بدي مې نه ده خوښه؛ نیکي مې خوښه ده...
غټې لیندۍ ( ) : دا نښه هلته په کارېږي چې یوه معترضه جمله په بله معترضه جمله یا کلمه کې راشي؛ نو دغه دواړه جملې داسې لیکي:
[که رښتیا ووایم (خدایﷻ مې دې غاړه نه نیسي) دا سړی ډېر بد سړی دی.]
غبرگې لیندۍ (( )): کله چې یو عبارت له کوم کتابه رانقلوي؛ یا کومه مقوله راوړي، نو په دغو کرښو کې یې لیکي لکه: زموږ پیغمبرﷺ فرمایلي دي: ((د وطن سره مینه د ایمان جز دی)).
درې ستورې ***: کله چې د یوې مقالې یا داستان یوه برخه تمامه شي او بله برخه پیلېږي؛ نو همدا نښه ایښودل کېږي او یوه برخه له بلې نه بېلوي.
یو ستوری * : ځینې لیکوالان هغه وخت دا نښه د هغې کلمې تر څنګ ږدي چې په لمن لیک (پاورقي) کې د هغې په هکله خاصې خبرې وي او ځینې لیکوالان یې د هغې کلمې تر څنګ ږدي چې په صحت یې باور نه لري.
همدارنګه ځینې لیکوالان د هغه ټکي ترڅنګ چې باور پرې نه لري سوالیه (؟) لیکي.
په دغو نښو سربېره نورې نښې هم شته. ښوونکی دې د لازیاتو معلوماتو لپاره لاندې کتابونه وګوري.

ماخذونه:

گل پاچا الفت، لیکوالي املاء او انشاء، پښتو ټولنه، ۱۳۳۹هـ ل کال.
د لیکوالۍ فن، سید محی الدین هاشمي.

# پنځلسم لوست

## د تدریس د لارښود پلان

**د تدریس وخت: (درې درسي ساعتونه)**

| د مطالبو سرليکونه | د مطالبو شرحه |
|---|---|
| ۱ـ د لوست موضوع | انشاء او ليکوالي |
| ۲ـ د زده کړې (پوهنيزې، مهارتي او ذهنيتي) موخې: | ـ د انشاء او ليکوالۍ پر مفهوم باندې پوهېدل<br>ـ د ځينو گرامري قواعدو پېژندل او زده کول<br>ـ په زده‌کوونکو کې د انشاء ليکلو ذوق راپيدا کول<br>ـ د انشاء او املاء ترمنځ د توپير پېژندل<br>ـ د انشايي متنونو پېژندل او له نورو څخه يې توپير کول<br>ـ د انشاء پر ځانگړتياوو پوهېدل<br>ـ د ليکلو د مهارت پياوړي کول<br>ـ د لوستلو او ليکلو د مهارتونو پياوړي کول |
| ۳ـ د تدريس لارې: | لوستل او ليکل، پوښتنې او ځوابونه، ډله ييز فعاليتونه، يو کسيز فعاليت. |
| ۴ـ د تدريس وسيلې: | درسي کتاب، توره تخته، تخته پاک، تباشير، کتابچه او قلم. |
| ۵ـ د ارزونې لارې او وسيلې: | شفاهي ارزونه، عملي کار<br>د يادښت په کتابچه يا يو جدول کې د زده‌کوونکو لوستل، ليکل، او د ډله ييز کار د څرنگوالي ليکل |
| ۶ـ د زده کړې او تدريس فعاليتونه: | لومړنی فعاليت:<br>روغبړ، د حال احوال پوښتنه، د حاضرۍ اخيستل، د کورني کار کتنه |
| | د انگېزې رامنځته کول: د انشاء په اړه د پوښتنې طرح کول، لکه تاسې له ځانه د کومې موضوع په اړه څه ليکلي دي؟ د زده‌کوونکو ځوابونه، خبرې او بحث |

| ۱-۲ د ښوونکي فعالیتونه | د زده‌کوونکو فعالیتونه |
|---|---|
| ـ ښوونکی دې متن په زده‌کوونکو باندې ولولي او د هر پراګراف د مفهوم په اړه دې خبرې وکړي.<br>ـ د متن په لوستلو کې د زده‌کوونکو د تېروتنو سمول.<br>ـ هر زده‌کوونکي ته وخت ورکول چې پوښتنو ته ځوابونه ووايي.<br>ـ له زده‌کوونکو څخه د درس په اړه ځینې ګرامري پوښتنې کول.<br>ـ د زده‌کوونکو هڅونه چې د ټولګي په مخکې خبرې وکړي او د لوست لنډيز ووايي.<br>ـ په ډلو د زده‌کوونکو وېشل او هرې ډلې ته د فعالیت ټاکل.<br>ـ د تمرینونو په حلولو کې د زده‌کوونکو لارښوونه.<br>- ښوونکی زده‌کوونکو ته کورنۍ دنده ټاکي. | - زده‌کوونکي دې متن په مناسب لوړ غږ ولولي او د هر پراګراف مفهوم دې په خپلو خبرو کې وړاندې کړي.<br>- د ښوونکي خبرو ته غوږ نیول او د متن په لوستلو کې خپلې تېروتنې سمول.<br>- زده‌کوونکي د ټولګي کار ترسره کوي او پوښتنو ته ځوابونه وايي.<br>- زده‌کوونکي په متن کې د صفت کلمې پيدا کوي.<br>- زده‌کوونکي د ټولګي په وړاندې د لوست مفهوم په خپلو خبرو کې وايي.<br>- زده‌کوونکي په ډله ییزو فعالیتونو کې ونډه اخلي.<br>- زده‌کوونکي د تمرینونو په حلولو کې برخه اخلي.<br>- زده‌کوونکي کورنۍ دنده یاداشت کوي او په کورونو کې یې بشپړوي. |

۷ـ د متن د ستونزمنو برخو روښانه کول:

انشاء: نوی مضمون، نوی خیال د الفاظو او کلماتو په قالب کې اچول انشاء ده. د انشاء ضروري توکي دا دي: په متن کې رسايي، د ښکلو کلماتو غوره کول د نوي خيال وړاندې کول، د ادبي ژبې کارول او نور.

نظم: په لغت کې د مرغلرو پېيلو ته وايي او هر هغه کلام چې وزن او قافيه ولري نظم دی.

نثر: په لغت کې شيندلو، تيتولو او خورولو ته وايي، هر هغه کلام چې د وزن او قافيې له قید څخه خلاص وي نثر بلل کېږي.

په انشائيه ليکنوکې ټول هنري نثرونه او ادبي ژانرونه، لکه: لنډه کيسه، ناول، رومان، طنز، ډرامه او نور راځي.

۸ـ ښوونکي ته اضافي معلومات او ماخذونه:

انشاء په لغوي معنا ایجاد او د يو نوي شي پيدا کول دي.

په ادبي اصطلاح کې انشاء د الفاظو په بڼه کې د يوه نوي فکر او نوي خيال څرګندولو ته وايي.

د انشاء او د ليکوالۍ فن دادی چې سړی خپل مطلب په سمه توګه ادا کړي او څه چې يې په زړه او ذهن کې وي، په ښو الفاظو يې د ژبې د قانون سره سم په مؤثر ډول د فصاحت او بلاغت په اصولو برابر څرګند کړي.

که څوک وغواړي په يوه موضوع کې مقاله وليکي، نو لومړی بايد خپل هدف سم وټاکي او په دې پوه شي چې زه څه ليکم؟ د څه لپاره يې ليکم او د چا لپاره؟ تر دې وروسته دې بيا ليکل پيل کړي.

انشاء په درې ډوله ده:

۱. وصفي انشاء: هغې انشاء ته وايي چې د يو شي حقيقت په پوره ډول بيانوي، هغه څه چې حقيقت وي بايد وليکل شي او مبالغه پکې نه وي مثلاً:

شپه د ورځې څخه وروسته راځي چې لمر راوخېژي نو ورځ او چې پرېوځي نو شپه شي.
شپه د خوب او راحت او ورځ د کار او فعالیت لپاره وي.
۲. نقلي انشاء: موږ د خپلو دوستانو او ملګرو سره په غونډو کې کله علمي خبرې کوو او کله تېرې پېښې او واقعات بیانوو دارنګه عبارت ته نقلي انشاء وایي، مثلاً: یو عاجز ړوند سړی په لاره کې ناست و، نژدې و چې موټر یې ووهي، یو سړی راغی له لاسه یې ونیو او یوې ګوښې ته یې کړ او له خطره یې بچ کړ. دې ته نقلي انشاء وایي.
۳. ابتکاري انشاء: که وغواړي چې د قدرتي شیانو په هکله لکه: ابشار، غرونه، دښتې، سیندونه، وریځ، ستوري، سپوږمۍ او نور په تازه خیالاتو او نوي فکر سره په خپلو لیکنو کې د یوه مضمون او مقالې په ډول ولیکو داسې لیکنې ته ابتکاري انشاء وایي. مثلاً:
د هغه غره په لمنه کې د شنو وښو سربېره زېړو، سرو، شنو او نورو ډول ډول ګلانو د غره لمن لا ښایسته کړې او انسان ته د نوي ژوند زیری ورکوي او دې ته یې هڅوي چې ټول عمر همدغلته ژوند وکړي او د طبیعت له ښکلا نه خوند واخلي.
انشاء نور ډولونه هم لري، چې په راتلونکو ټولګیو کې به یې ولولئ.

ماخذونه:


۱- لیکوالي املا او انشاء، ګل پاچا الفت، پښتو ټولنه، ۱۳۳۹ هـ ل کال.
۲- ادبي بحثونه، ګل پاچا الفت.
۳- بدیع او بیان، نور احمد شاکر.

# شپاړسم لوست

## د تدریس د لاربنود پلان

### د تدریس وخت: (درې درسي ساعتونه)

| د مطالبو سرلیکونه | د مطالبو شرحه |
|---|---|
| ۱ـ د لوست موضوع | متلونه |
| ۲ـ د زده کړې (پوهنيزې، مهارتي او ذهنيتي)موخې: | ـ له شفاهي ادبیاتو سره اشنایي پیداکول.<br>ـ په متلونو باندې پوهېدل.<br>ـ د متلونو استعمال په مقصد او گټو باندې یې پوهېدل.<br>ـ په خبرو کې د متلونو د کارولو ځای پېژندل.<br>ـ د منظومو متلونو پېژندل.<br>ـ د منثورو متلونو پېژندل.<br>ـ د لوستلو او لیکلو د مهارتونو پیاوړي کول. |
| ۳ـ د تدریس لارې: | لوستل او لیکل، پوښتنې او ځوابونه، ډله ییز فعالیتونه، یو کسیز فعالیت. |
| ۴ـ د تدریس وسیلې: | درسي کتاب، توره تخته، تخته پاک، تباشیر، کتابچه او قلم. |
| ۵ـ د ارزونې لارې او وسیلې: | شفاهي ارزونه، عملي کار<br>د لوستلو، لیکلو او ډله ییز کار مشاهده او د خارنې پایلې یې په کتابچه کې لیکل |
| ۶ـ د زده کړې او تدریس فعالیتونه: | لومړنی فعالیت:<br>روغبړ، د حال احوال پوښتنه، د حاضرۍ اخیستل، د کورني کار کتنه |
| | د انگېزې رامنځته کول:<br>په تخته باندې دا متل لیکل: چې ((بد گرځي، بد به پرځي))<br>زده‌کوونکي دې ځوابونه ووایي، خبرې او بحث دې پرې وکړي. |

| ۱-۲ د ښوونکي فعالیتونه | د زده‌کوونکو فعالیتونه |
| --- | --- |
| ـ د متن په لوستلو کې د زده‌کوونکو لارښوونه او د هغو هڅونه چې پوښتنو ته ځوابونه ووایي.<br>ـ د متن په لوستلو کې د زده‌کوونکو د تېروتنو سمول.<br>ـ هر زده‌کوونکي ته وخت ورکول چې پوښتنو ته ځوابونه ووایي.<br>ـ له زده‌کوونکو څخه ګرامري پوښتنې، لکه د ضمیرونو په اړه له مثالونو سره.<br>ـ د زده‌کوونکو هڅونه او تشویق چې د ټولګي په مخکې د متلونو پر معنا وغږېږي.<br>ـپه ډلو د زده‌کوونکو وېشل او هرې ډلې ته د فعالیت ټاکل.<br>ـ د متلونو په بشپړولو او د تمرینونو په حلولو کې د زده‌کوونکو لارښوونه.<br>- ښوونکی د متلونو په اړه کورنۍ دنده ټاکي. | ـ د متن لوستل او د کتاب پوښتنو ته سم ځوابونه ویل.<br>ـ د ښوونکي خبرو ته غوږ نیول او د خپلو تېروتنو سمول.<br>ـ د ټولګي د کار ترسره کول او پوښتنو ته ځوابونه ویل.<br>- زده‌کوونکي په متلونو کې ضمیرونه پیدا کوي.<br>- زده‌کوونکي په وار سره متلونه معنا کوي او د کارولو ځای یې په ګوته کوي.<br>- په ډله ییزو فعالیتونو کې برخه اخیستل.<br>- زده‌کوونکي په کتاب کې راغلي متلونه د خپلې لیکنې په واسطه بشپړوي او د تمرینونو په حل کې هم برخه اخلي.<br>- زده‌کوونکي کورنۍ دنده اخلي او په کورونو کې یې بشپړوي. |

۷ـ د متن د ستونزمنو برخو روښانه کول:

محاوره او متلونه سره نژدې دي او کله کله یې پولې سره ګډېږي. محاوره او اصطلاح هم یو لنډ عبارت دی او کله جمله هم وي چې د کلمو معنا یې په اصلي مفهوم نه استعمالېږي. او بله معنا یا دویمه معنا یې مقصد وي، لکه تر بوسو لاندې اوبه تیرول، اسمان ته کتل او نور چې نژدې معنا یې مراد نه وي.

د بوسو لاندې اوبه تیرول یعنې چل ول او فریب کول.

اسمان ته کتل یعنې ځان ډېر لوړ ښودل او کلانکاري کول.

استعاره: لغوي معنا یې په سوال او عاریت د یو شي غوښتل دي او په ادبي اصطلاح کې د تشبه لنډ شکل دی.

استعاره په اصطلاح کې په غیر حقیقي معنا د یوې کلمې کارول دي او د حقیقي او مجازي معنا ترمنځ علاقه، مشابهت او ورته والی دی.

۸ـ ښوونکي ته اضافي معلومات او ماخذونه:

متلونه د پیړیو په اوږدو کې د زیاتو تجربو په لړ کې رامنځته شوي دي. له همدې کبله وایي چې متلونه د کانې کرښې دي. هر متل پخپل ځای او د اړوندې موضوع په اړه استعمالېږي. متلونه یا د یو عبارت په شکل وي یا د یوې جملې په بڼه وي، خو د یو کتاب په اندازه خبرې پخپل ځان کې رانغاړي. متلونه په خبرو کې د استدلال لپاره کارول کېږي او یوه موضوع پرې فیصلې ته رسیږي له دې کبله متل د بدیع په فن کې یو صنعت بلل شوی دی.

همدارنګه متلونه د شفاهي ادبیاتو په توګه د یو ملت د تیر تاریخ کلتوري اړخونه هم روښانه کوي، ځکه چې هر متل یوه کیسه لري او له یوې پېښې او کیسې سره تړلی وي. د یو لړ متلونو کیسې موږ ته راپاتې دي او د یو لړ له منځه تللي دي. یا تر موږ نه دي رارسیدلي.

متلونه په دوه ډوله دي يو ډول يې منظوم او بل ډول يې منثور دی. منظوم متلونه هغه دي چې دواړه مسرې (مصرع) يې وزن لري، لکه:
ژرنده که د پلار ده، هم په وار ده.
پوره؛ ورک دې کړل دوه کوره
مه کوه په چا چې و به شي په تا
منثور متلونه هغه دي چې وزن نه لري، لکه:
که غر لوړ دی پر سر يې لار شته.
د متلونو پېژندنه دوه خواوې لري. يو دا چې اصل مورد يې سړي ته معلوم شي چې دې ته حقيقي معنا وايي او بل دا چې د استدلال ځای يې وپېژندل شي، دا يې کنايي معنا ده.
د بېلگې په توگه: (مات لاس غاړې ته لوېږي) حقيقي معنا يې داده چې که د چا لاس مات شي؛ نو غاړې ته يې اچوي او مجازاً په داسې ځای کې استعمالېږي چې که چېرې د چا کوم دوست يا خپلوان بېوزله، بېوسه او لاچاری شي او يا په کومه پښنه کې راگېر شي نو د هغه مشران او خپلوان به يې بار پر اوږو اخلي او له مصيبت نه به يې ژغوري.
متل ته په عربي کې (مثل) وايي ځکه چې د دوهم شي حال د اول سره مشابه کېږي، يعنې د استعمال ځای يې په اصل مورد قیاسېږي.
څو نور متلونه:
چې جاسوس يې د کوره وي، خونه يې توره وي.
دنيا په اميد خوړی شي.
څه لاس پناه، څه غر پناه.
چې درومې څه به مومې.
تيږه په تيږه ماتېږي.

**ماخذونه:**

١ـ پښتو متلونه، محمد دين ژواک ـ پښتو ټولنه.
٢ـ روهي متلونه، محمد نواز طائر ـ پښتو اکاډمي پېښور.
٣- پښتو ادب کې متل، داور خان داود.
۴- د پښتو ادب تاريخ، صديق الله رښتين.

# اوولسم لوست

## د تدریس د لاربنود پلان

**د تدریس وخت: (درې درسي ساعتونه)**

| د مطالبو سرلیکونه | د مطالبو شرحه |
|---|---|
| ۱ـ د لوست موضوع | د مور زړه |
| ۲ـ د زده کړې (پوهنیزې، مهارتي او ذهنیتي)موخې: | ـ د مور په مقام پوهېدل.<br>ـ په زده‌کوونکو کې د مور د درناوي احساس پیاوړی کول.<br>ـ د گرامري برخو پېژندنه او زده کول.<br>ـ د مور د درناوي په اړه د خدایﷻ او د هغه د رسولﷺ په احکامو پوهېدل.<br>ـ د مور د حقونو پېژندل.<br>ـ د مور په اړه د نظمونو، شعرونو او نثرونو لوستل او تحلیول.<br>ـ د نوم او ضمیر پېژندل او مثالونه یې ورکول.<br>ـ د لوستلو او لیکلو د مهارت پیاوړي کول.<br>ـ د پوښتنو او لیکلو د مهارت پیاوړي کول.<br>ـ د درس د پوښتنو او تمرینونو حلول. |
| ۳ـ د تدریس لارې: | لوستل او لیکل، پوښتنې او ځوابونه، ډله ییز فعالیتونه، یو کسیز فعالیت. |
| ۴ـ د تدریس وسیلې: | درسي کتاب، توره تخته، تخته پاک، تباشیر، کتابچه او قلم. |
| ۵ـ د ارزونې لارې او وسیلې: | شفاهي ارزونه، عملي کار<br>د لوستلو، لیکلو او ډله ییز کار مشاهده او د خارنې پایلې یې په کتابچه کې لیکل |
| ۶ـ د زده کړې او تدریس فعالیتونه: | لومړنی فعالیت:<br>روغبړ، د حال احوال پوښتنه، د حاضرۍ اخیستل، د کورني کار کتنه |
| | د انگېزې رامنځته کول:<br>ښوونکی دې په تخته ولیکي ((جنت د مور تر پښو لاندې دی))<br>زده‌کوونکي دې ددې حدیث شریف په اړه خبرې وکړي او نوي درس ته دې لاره پرانیزي. |

| ۱-۲ د ښوونکي فعالیتونه | د زده‌کوونکو فعالیتونه |
|---|---|
| ـ د متن په لوستلو کې د زده‌کوونکو لارښوونه او د هغو تشویق او هڅونه چې د شعر مفهوم په خپلو خبرو کې وړاندې کړي.<br>ـ د متن په لوستلو کې د زده‌کوونکو د تېروتنو سمول.<br>ـ هر زده‌کوونکي ته وخت ورکول چې په شعر کې په راغلې کیسې باندې خبرې وکړي.<br>ـ لــه زده‌کوونکوڅخــه د درس پــه اړه ځینـــې ګرامري پوښتنې.<br>ـ د زده‌کوونکو هڅونه او تشویق چې د ټولګي په مخکې خبرې وکړي او د لوست لنډیز ووایي.<br>ـ د زده‌کوونکو وېشل په ډلو او هرې ډلې ته د فعالیت ټاکل.<br>- د نویـو کلمـاتو پـه معنـا ، جملـو جوړولـو او د تمرینونو په حلولو کې د زده‌کوونکو لارښوونه.<br>- ښوونکی د کورنۍ دندې په اړه معلومات ورکوي. | - د متن سم لوستل او د شعر د مفهوم په اړه خبرې کول.<br>- د ښوونکي خبرو ته غوږ نیول او د خپلو تېر وتنو سمول.<br>- زده‌کوونکي د کیسې په اړه خپل نظر څرګندوي.<br>- زده‌کوونکي په شعر کې نومونه، صفتونه او ضمیرونه په نښه کوي.<br>- زده‌کوونکي په وار سره د لوست لنډیز او د مور د مقام په اړه خبرې کوي.<br>- زده‌کوونکي په ډله ییزو فعالیتونو کې برخه اخلي.<br>- زده‌کوونکي نوې کلمې معنا کوي. په جملو کې یې کاروي او د تمرینونو په حلولو کې برخه اخلي.<br>- زده‌کوونکي غوږ نیسي. په کورنۍ دنده ځان پوهوي او په کورونو کې یې بشپړوي. |

۷ـ د متن د ستونزمنو برخو روښانه کول:
په دې لوست کې د اولاد په هکله د مور د زړه سوي او مهربانۍ هغه کچه ښوول شوې ده، چې ساری نه لري. ځکه؛ ډېر ځله داسې شوي چې مور د اولاد د ژغورنې لپاره خپل ځان په اوبو یا اور کې غورځولی او د هغه د ژغورنې هڅې یې کړې دي. په همدې بنیاد وایي چې جنت د مور تر پښو لاندې دی. باید درنښت یې پر ځای شي.

۸ـ ښوونکي ته اضافي معلومات او ماخذونه:
د دیني ښوونو تر څنګ چې د والدینو د حقونو او د هغوی د درناوي په اړه پکې ویل شوي دي. زموږ په ادب او شعر کې هم د مور مقام ستایل شوی او په اړه یې ډېر شعرونه او نثرونه راغلي دي چې ځانته یو ځېرکی جوړوي. دا ځکه چې مور لومړنۍ ښوونکې ده چې د اولاد روزنه او پالنه یې پر غاړه ده. په دغو ټولو لیکنو او شعرونو کې د مور مینې، مهربانۍ او شفقت انعکاس موندلی دی.
دادی د سید شمس الدین مجروح یو بل شعر چې مور پکې زوی ته داسې ویلي دي:

اې زړګیــــه اې د مــــور د ســــترګو تــــوره!
للـــو نـــه وایـــم خبـــره مـــې ده نـــوره
ډېـــر للـــو، للـــو مـــې وویـــل تراوســـه
اوس دې وخـــت د ویـــښېدو دی خبـــر اوســـه
چـــې لـــږ څـــه د ښـــو او بـــدو نـــه خبـــر شـــي

چـې آګـاه پـه پـېژنـدو د پـښو او سـر شـي
چـې خپـل ځـان او دې جهـان و تـه دې پـام شـي
د غفلـت خوبونـه نـور پـه تـا حـرام شـي
نـــوره ســـتا د کوچنیـــوالي دوره لاړه
اوس تکلیـف د سـرېتوب شـو در پـه غـاړه
وشـوه څـه کـه لاتراوسـه څـه کـوچنی يـې
پـه معنـا کـې ښـه پـوره کـره سـړی يـې
د سـبا د ورځـې پـلار يـې کـه يـې زوی اوس
نـو پيـدا کـړه لاد پـلار پـه ځـان کـې خـوی اوس
ځـــان دې وپېژنـــه تـــه اولاد د چـــا يـــې؟
د ميـرويس او د محمـود او احمـد شـاه يـې!
ځـــان تيـــار د خـــدمتونو د وطـــن کـــړه
کـه پـښتون يـې ګـوره خپـل کمـيس کفـن کـړه
د همزولـو نـه کـه لـږ څـه قـدرې پـس شـوې
کـه بـې علمـه بـې هنـره شـوې نـاکس شـوې
مـا مـې پـی درتـه بـښلي نـه دي ګـوره
اې زړګيـــه اې د مـــور د ســـترګو تـــوره

پر دې سربېره د معاصرې دورې زياتو شاعرانو د مور په درناوي کې شعرونه ويلي دي او د مور مقام يې ستايلی دی.
د خدای بښلي سيد شمس الدين مجروح لنډه پېژندنه:
ښاغلی مجروح د افغانستان د معاصرو ادبياتو يو خوږ ژبی شاعر، حساس اديب، ليکوال، د فلسفي افکارو خاوند او د ويښ زلميانو له ډلې څخه و.
د ليکل شوو تذکرو له مخې مجروح په ۱۹۱۰م کال د کنړ ولايت په سمسوره او ښکلې دره (شينکوړک) کې زېږېدلی. کورنۍ يې روحاني مقام درلود. پلار يې سيد حضرت شاه پاچا د ديني علومو نامتو عالم و.
سيد شمس الدين مجروح په درې کلنۍ کې د پلار له مينې او سيوري نه بې برخې شوی و. هغه لومړنۍ زده کړې په خپل کور کې سرته رسولي او د رسمي ماموريت دوره يې د اعيانو د مجلس څخه پيل شوې ده.
د بانک د څارنې په برخه کې يې دنده درلوده. دولس کاله يې د قبايلو په رياست کې مسلکي او اداري چارې چلولې.
بيا يې د عدليې د وزير او د صدارت د مرستيال په توګه دندې سرته رسولي دي. وروستۍ دنده يې په مصرکې د افغانستان د سفير په توګه وه. همدارنګه د افغانستان د اساسي قانون د مسودې د جوړولو کمېټې د مشر په توګه يې دنده درلوده.
ښاغلي مجروح شعرونه لږ ويلي خو د کيفيت (څرنګوالي) لـه مخې ډېر پـه زړه پورې او د ادبي او معنوي ښېګڼو څخه ډک دي. په شعر او ادب کې د انتقادي نظر خاوند دی. د شعرونو يوه ټولګه يې د (منتخب شعرونو) په نامه په ۱۳۳۷هـ ل کال کې د پښتو ټولنې له خوا چاپ شوې او بله ټولګه يې د (ياد فرياد) په

نامه په ۱۹۸۵م کال په پېښور کې خپره شوې ده. د خوشحال خان او اقبال شعرونه یې خوښېدل. په نثر کې یې ډېرې مقالې په مختلفو مطبوعاتو کې خپرې شوې دي. د مجروح فکر او ژوند په درې ټکو (فلسفه، ادب او سیاست) ولاړ و. د سید جمال الدین افغان د فکر کلک ملګری و. له هغه نه ډېر علمي او ادبي اثار راپاتې دي، نوموړی په ۱۳۸۱هـ ل کال په امریکا کې وفات شو او بیا یې مړی افغانستان ته رانقل او په خپله پلرنۍ هدیره کې ښخ شو.

ماخذ:

د پښتو ادبیاتو تاریخ، اوسنۍ دوره، دویم ټوک، پوهاند ډاکټر زیور الدین زیور، ۱۳۸۷ هـ ل کال.

ښوونکی دې د نورو معلوماتو لپاره د موضوع په اړه دا لاندې کتابونه ولولي.

۱ـ منتخب اشعار، سید شمس الدین مجروح، پښتو ټولنه.

۲ـ یاد فریاد، سید شمس الدین مجروح، د افغانستان د مجاهدو لیکوالو ټولنه، پېښور، ۱۹۸۵م کال.

# اتلسم لوست

## د تدریس د لارښود پلان

### د تدریس وخت: (درې درسي ساعتونه)

| د مطالبو سرلیکونه | د مطالبو شرحه |
|---|---|
| ۱ـ د لوست موضوع | ښوونکی د ټولنې لارښود |
| ۲ـ د زده کړې (پوهنیزې، مهارتي او ذهنیتي) موخې: | ـ په ټولنه کې د ښوونکي د مقام پیژندل.<br>ـ په زده‌کوونکو کې د ښوونکي د احترام کولو د حس روزل.<br>ـ د ښوونکي د دندو او مسؤلیت پیژندل.<br>ـ په زده‌کوونکو کې دا احساس روزل چې د ښوونکو په لارښوونه عمل وکړي.<br>ـ د علم په خپرولو کې د ښوونکو په دنده پوهېدل. |
| ۳ـ د تدریس لارې: | لوستل او لیکل، پوښتنې او ځوابونه، ډله ییز فعالیتونه، یو کسیز فعالیت. |
| ۴ـ د تدریس وسیلې: | درسي کتاب، توره تخته، تخته پاک، تباشیر، کتابچه او قلم. |
| ۵ـ د ارزونې لارې او وسیلې: | شفاهي ارزونه، عملي کار<br>د لوستلو، لیکلو او ډله ییز کار ځارل او پایلې یې په کتابچه کې لیکل |
| ۶ـ د زده کړې او تدریس فعالیتونه: | لومړنی فعالیت:<br>روغبړ، د حال احوال پوښتنه، د حاضرۍ اخیستل، د کورني کار کتنه |
| | د انګېزې رامنځته کول:<br>ښوونکی دې په تخته باندې ولیکي ((ښوونکی د ټولنې معمار دی))<br>زده‌کوونکي دې دغه جمله معنا او تحلیل کړي او بحث دې پرې وکړي. |

| ۱-۲ د ښوونکي فعالیتونه | د زده‌کوونکو فعالیتونه |
| --- | --- |
| ـ ښوونکی لومړی متن پخپله لولي او بیا یې په زده‌کوونکو باندې لولي.<br>ـ د متن په لوستلو کې د زده‌کوونکو تېروتنې سموي.<br>ـ هر زده‌کوونکي ته وخت ورکول چې نوي لغتونه معنا او په جملو کې وکاروي.<br>ـ له زده‌کوونکوڅخه د درس په اړه ځینې ګرامري پوښتنې.<br>ـ د زده‌کوونکو هڅونه او تشویق چې د ټولګي په مخکې خبرې وکړي او د لوست لنډیز ووایي.<br>ـ په ډلو د زده‌کوونکو وېشل او هرې ډلې ته د فعالیت ټاکل.<br>ـ د جملو په بشپړولو او تمرینونو کې د زده‌کوونکو لارښوونه. | ـ زده‌کوونکي لوستلو ته غوږ نیسي او بیا پخپله متن په لوړ غږ لولي.<br>ـ زده‌کوونکي د ښوونکي خبرو ته غوږ نیسي او خپلې نیمګړتیاوې سموي.<br>- زده‌کوونکي نوې کلمې معنا کوي او بیا یې په جملو کې استعمالوي.<br>- زده‌کوونکي د ورکړل شویو لغتونو سم او ناسم ځوابونه په نښه کوي او هم دهر یو مترادف پیدا کوي.<br>- په ډله ییزو فعالیتونو کې برخه اخلي.<br>- زده‌کوونکي د جملو تش ځایونه په مناسبو کلمو ډکوي او د تمرینونو په حلولو کې برخه اخلي. |

۷ـ د متن د ستونزمنو برخو روښانه کول:

ښوونکی هغه څوک دی چې ټول بشریت ته د درنښت او احترام وړ دی.

نړۍ د ښوونکي په زیار آباده او ودانه ده.

که ښوونکی نه وای، نو نړیوال به له ډېرو ستونزو سره مخ وای؛ ځکه چې ټول ایجادات او اختراعات د ښوونکي د کړاو محصول دی.

ښوونکی د ټولنې معمار دی.

۸ـ د درس په اړه ښوونکي ته اضافي معلومات او ماخذونه:

په حقیقت کې د ټول عالم بشریت ښوونکی حضرت محمدﷺ دی. هغه د انسانانو د لارښوونې لپاره رالېږل شوی دی. لکه څنګه چې عالمان د انبیاؤو وارثان بلل شوي، ښوونکي او استادان هم له دغه موقفه برخمن دي، نو د دوی دنده هم خلک نیکې او سمې لارې ته رابلل دي.

د اسلام د اصولو له مخې زده کړه د ټولو مسلمانانو فریضه ده او باید په ډېر جدیت، صداقت او اخلاص یې زده کړي.

د زده کړې موخه ګټور او صالح کارونه سرته رسول دي، او څرنګه چې عالمان د انبیاوو وارثان دي، نو د عالم میراث باید خامخا علم وي، نه مال او دولت.

حضرت محمدﷺ فرمایي: څوک چې چاته د علم لاره وښیي، نو الله به هغه ته د جنت لاره وښیي. همدارنګه نبوي وینا ده چې د هغه چا قدمونو ته پرښتې خپلې وزرې غوړوي چې د علم په زده کړه او خپرولو بوخت وي.

ښوونکی د ټولنې معمار او لارښود دی، د ټولنې د غړو سیرت، ښکلا او سمونه د ښوونکي دنده ده. نو په

کار ده چې د ماشومانو په سالمه روزنه او ښوونه کې له هېڅ ډول محنت او خوارۍ نه ډډه ونه کړي.
ښوونکی باید د اخلاقو نمونه وي. انصاف، رحم او مهرباني ولري او زده‌کوونکي هم په دغو اوصافو وروزي او ټولنې ته داسې اشخاص وړاندې کړي چې د هېواد او هېوادوالو د خوشالۍ او سوکالۍ او دده د فخر سبب شي.
د ښوونکي او ښوونې په اړه نظريات:

- علم د پيغمبرانو او مال د کفارو (قارون، فرعون او نورو) ميراث دی. (حضرت ابوبکر صديقؓ).
- د دنيا خوښوونکي ته علم ورزده کول ډاکو ته توره په لاس کې ورکول دي. (حضرت عمر فاروقؓ).
- هغه علم ضايع وي چې عمل پرې ونه کړای شي. (حضرت عثمانؓ).
- شرافت په علم او ادب سره دی نه په مال او نسب سره (حضرت علي کرم الله وجههُ).
- کله به چې په يوې خبرې پوه شوم او د باريکۍ او حکمت نه به يې واقف شوم نو الحمد لله به مې وويله؛ ځکه خو خدایﷻ زما پوهه زياته کړه. (امام ابو حنيفه رح).

ماخذونه:


۱- فن تعليم و تربيت، فضل حسين، ايم، اې. ايل، ټي، لاهور چاپ ۱۹۹۸م کال.
۲- سه صد حديث (قيام الدين کشاف).

# نولسم لوست

## د تدریس د لارښود پلان

### د تدریس وخت: (درې درسي ساعتونه)

| د مطالبو سرليکونه | د مطالبو شرحه |
|---|---|
| ۱ـ د لوست موضوع | رابندر ناتهـ ټاګور (نړیواله ادبي څېره) |
| ۲ـ د زده کړې (پوهنیزې، مهارتي او ذهنيتي) موخې: | ـ ځينې نړيوالې ادبي څېرې پېژندل.<br>ـ د بېلا بېلو ژبو او ادبیاتو پر مشترکو ښېګڼو پوهېدل.<br>ـ له نړيوالو ادبي څېرو او ادبياتو سره اشنايي پيدا کول.<br>ـ د خپلې ژبې د ادبي تخليقاتو لپاره له نړيوالو ادبياتو څخه الهام اخيستنه.<br>ـ د نړۍ د ځينو هېوادونو او سيمو پېژندل.<br>ـ د رابندر ناتهـ ټاګور له ژوند او آثارو نه خبرېدل.<br>ـ د رابندر ناتهـ ټاګور له مشهور اثر (ګيتانجلي) سره اشنايي پيدا کول.<br>ـ د ژبنيو مهارتونو پياوړتيا.<br>ـ په پښتو کې د رابندر نات ټاګور له ژباړل شوو آثارو سره اشنايي پيداکول. |
| ۳ـ د تدریس لارې: | لوستل او ليکل، پوښتنې او ځوابونه، ډله ييز فعاليتونه، يو کسيز فعاليت. |
| ۴ـ د تدریس وسیلې: | درسي کتاب، توره تخته، تخته پاک، تباشير، کتابچه او قلم. |
| ۵ـ د ارزونې لارې او وسیلې: | شفاهي ارزونه، عملي کار<br>د لوستلو، ليکلو او ډله ييز کار څارل او پايلې يې په کتابچه کې ليکل |
| ۶ـ د زده کړې او تدریس فعالیتونه: | لومړنی فعاليت: روغبړ، د حال احوال پوښتنه، د حاضرۍ اخيستل، د کورني کار کتنه |
| | د انګېزې رامنځته کول: دلاندې پوښتنې په طرح کولو سره د انګېزې پيدا کول.<br>کومه نړيواله ادبي څېره پېژنئ؟ |

| ۱-۷ د ښوونکي فعالیتونه | د زده‌کوونکو فعالیتونه |
| --- | --- |
| ـ د متن په لوستلو کې د زده‌کوونکو لارښوونه او د هغو هڅونه چې پوښتنو ته ځوابونه ووایي.<br>ـ د متـن پـه لوسـتلو کـې د زده‌کوونکـو د تېروتنـو سمول.<br>ـ هر زده‌کـوونکي تـه وخت ورکـول چـې پوښـتنو تـه ځوابونه ووایي.<br>ـ له زده‌کوونکو د نویو کلماتو په اړه پوښتنې کول او هم په متن کې د نومځرو پیدا کول.<br>ـ د زده‌کوونکـو هڅونـه چـې د ټـولگي پـه مخکـې خبرې وکړي او د لوست مفهوم ووایي.<br>ـ زده‌کوونکي دې د نویو کلمـاتو معنـا کولـو او پـه جملو کې کارولو ته راوبولي.<br>- د تمرینونو په حلولو کې د زده‌کوونکو لارښوونه. | ـ زده‌کـوونکي مـتـن لـولي او د کتـاب پوښـتنو تـه سـم ځوابونه وايي.<br>ـ د ښوونکي خبرې په ځیر سره اورېدل او خپلو تېروتنو ته پاملرنه کول.<br>ـ د ټولگي د کار تر سره کول او پوښتنو ته ځوابونه ویل.<br>ـ په یوه پاڼه کاغذکې د نوو لغتونو لیکل او پـه جملـو کـې کارول او همدارنگه په متن کې د نومځرو په نښه کول.<br>- زده‌کوونکي په وار سره د ټاگور پـه ژونـد او اثـارو بانـدې خبرې کوي.<br>- زده‌کوونکي نوې کلمې معنا کوي او بیا یې په جملو کې کاروي.<br>- زده‌کوونکي د ښوونکي په لارښوونه تمرینونه حلوي.<br>- زده‌کوونکي له لارښوونې سره سم کورنۍ دنده اخلي. |

۷ـ د متن د ستونزمنو برخو روښانه کول:

۱. گیتانجلي د ټاگور لیکل شوی اثر دی چې په اصل کې (گیت آنجلی) دی.

۲. بنگال: پخوانی بنگله دېش چې په شرقي پاکستان یادېده.

۳. کلکته: د هندوستان یو لوی او تاریخي ښار دی.

۴. مهادیشي: هغه څوک چې مذهبي لارښوونې کوي او خلک سمې لارې ته رابولي.

۸ـ ښوونکي ته اضافي معلومات او ماخذونه:

بنگال د بنگله دېش په نامه هم یادېږي. د بنگال سوېل ته د بنگال خلیج، سوېل لوېدیځ ته یې اوړیسه لوېدیځ ته یې بهار، شمال ته یې د همالیې غرونه او ختیځ ته یې اسام دی. همدارنگه یې سوېل ختیځه څنډه پـه برمـا پورې نښتې ده. له ۱۷۵۷ م. کال څخه تر ۱۹۴۷م. کـال پـورې پخوانی هندوسـتان (اوسـنی هندوسـتان، بنگلـه دېش او پاکستان) د انگرېزانو مستعمره وه. د بنگله دېش اوسېدونکو ته بنگالیان وایي. بنگالیـان پـه بنگـالي ژبه غږېږي. د بنگله دېش پلازمېنه "ډهاکه" ده. په ۱۹۴۷م. کال کې یې له انگلستان څخه خپلـواکي واخیسـته او د پاکستان او هندوستان په نامه یې دوه جلا هېوادونه جوړ کړل. بنگله دېش او پاکستان دواړه د یوه هېواد په توگه پاتې شول او بنگال یې د شرقي پاکستان په نوم یاد کړ. بیا بنگله دېش په ۱۹۷۲ م. کال کې د جلا هېـواد په توگه اعلان شو. د ټاگور د کورنۍ غړي له آره د بنگال استوگن وو؛ خو دی په کلکته کې زېږېدلی و.

گیتانجلي د (۱۰۱) مناجاتونو ټولگه ده، بېنوا ژباړلې او لومړی ځل په ۲۱ مخونو کې د افغانستان راډیـو لـه خوا په ۱۳۳۲ هـ ل کال کې چاپ شوې ده. دویم ځل یې فاضل عـالم پوهاند رشاد سریزه کښلې او پـه ۲۱۲ مخونو کې د کابل پوهنتون د ادبیاتو پوهنځي له خوا په ۱۳۵۴هـ ل کال کې چاپ شوې ده.

ماخذونه:

۱- گیتانجلي، رابندر ناتهـ ټاگور، دبېنوا ژباړه، بېنوا فرهنگي ټولنه، دریم چاپ۱۳۸۳هـ ل کال.

# شلم لوست

## د تدریس د لارښود پلان

### د تدریس وخت: (درې درسي ساعتونه)

| د مطالبو سرلیکونه | د مطالبو شرحه |
|---|---|
| ۱ـ د لوست موضوع | ښکالو |
| ۲ـ د زده کړې (پوهنیزې، مهارتي او ذهنیتي)موخې: | ـ د ادبي لیکنې پېژندل.<br>ـ له معاصرو لیکوالو سره اشنایي.<br>- له هنري نثر سره د زده‌کوونکو اشنایي.<br>ـ د ادبیاتو پر ښېګڼو پوهېدل.<br>ـ د ژبنیو مهارتونو پیاوړتیا .<br>ـ زده‌کوونکي ادبي لیکنو ته هڅول.<br>ـ د ادبي نثرونو او نورو نثرونو توپیرول.<br>ـ د اورېدلو او لیکنې د مهارت پیاوړي کول. |
| ۳ـ د تدریس لارې: | لوستل او لیکل، پوښتنې او ځوابونه، ډله ییز فعالیتونه، یو کسیز فعالیت. |
| ۴ـ د تدریس وسیلې: | درسي کتاب، توره تخته، تخته پاک، تباشیر، کتابچه او قلم. |
| ۵ـ د ارزونې لارې او وسیلې: | شفاهي ارزونه، عملي کار<br>د لوستلو، لیکلو او ډله ییز کار ځارل او پایلې یې په کتابچه کې لیکل |
| ۶ـ د زده کړې او تدریس فعالیتونه: | لومړنی فعالیت: روغبړ، د حال احوال پوښتنه، د حاضرۍ اخیستل، د کورني کار کتنه |
| | د انګېزې رامنځته کول: دلاندې پوښتنې په کولو سره د انګېزې پیدا کول<br>ادبي نثر څه ته وایي؟ |

| ۱-۲ د ښوونکي فعالیتونه | د زده‌کوونکو فعالیتونه |
|---|---|
| ـ ښوونکی په زده‌کوونکو باندې متن په چوپه خوله لولي او بیا پرې د کیسې مفهوم وایي.<br>ـ د متن په لوستلو کې د زده‌کوونکو د تېروتنو سمول.<br>ـ هر زده‌کوونکي ته وخت ورکول چې پوښتنو ته ځوابونه ووايي.<br>ـ لـه زده‌کوونکـو څخـه د درس پـه اړه ځینـې گرامري پوښتنې.<br>ـ د زده‌کوونکو هڅونه چې د ټولگي په مخکې خبرې وکړي او د لوست لنډیز ووايي.<br>ـ په ډلو د زده‌کوونکو وېشل او هرې ډلې ته د فعالیت ټاکل.<br>ـ د لغتونـو پـه معنـا کولـو، جملـو جوړولـو او د تمرینونو په حلولو کې د زده‌کوونکو لارښوونه.<br>- ښـوونکی د کـورنۍ دنـدې پـه اړه معلومـات ورکوي او موضوع ورته ټاکي. | ـ زده‌کوونکي متن په چوپه خولـه لولي او بیـا د کیسـې مفهوم په خپلو خبرو کې وړاندې کوي.<br>- زده‌کـوونکي مـتن پـه لـوړ غـږ لـولي او پـه لوسـتلو کـې خپلې تېروتنې سموي.<br>- هر زده‌کوونکی پوښتنې ځوابوي.<br>- زده‌کـوونکي پـه ډلـه ییـزه توگـه پـه مـتن کـې نومونـه، صفتونه او ضمیرونه پیدا کوي.<br>- زده‌کوونکي د راغلي کیسې په مختلفو اړخونو خبرې کوي.<br>- زده‌کوونکي په ډله ییزو فعالیتونو کې برخه اخلي.<br>- زده‌کوونکي نوي لغتونـه معنـا کـوي، بیـا یـې پـه جملـو کې کاروي او په پای کې د تمرینونو پـه حلولـو کـې برخـه اخلي.<br>- زده‌کوونکي د کـورنۍ دنـدې پـه اړه معلومـات ترلاسـه کوي او په کورونو کې یې بشپړوي. |

۷ـ د متن د ستونزمنو برخو روښانه کول:

ښکالو: هغه آواز چې د لېرې یا نږدې څخه غـوږ تـه راشي او د علت د معلوملو او تشخیصولو لپاره یې ذهن او فکر ناکراره شي.

سپلمۍ: دیوه بوټي نوم دی.

منیب: په مسلسل ډول، په بیا بیا، په دوامداره ډول.

سود پرې کوم: خپل پام پرې غلطوم، ځانته ډاډ ورکوم، ځانته تسلي ورکوم.

۸ـ ښوونکي ته اضافي معلومات او ماخذونه:

د راحت زاخېلي نوم سیدراحت الله او د سید فریح الله زوی دی. په ۱۸۸۴م کال کې د پښتونخوا د نوښار د زاخېلو په کلي کې زېږېدلی. لومړنۍ زده کړې یې لـه خپـل پـلار څخه کړې دي او بیا یې مروجه علوم او دطب کتابونه لوستلي دي. راحت زاخېلی ډېر ښه لیکوال او شاعر و. د خطاطۍ د هنر خورا ښه استاد و، ځکه خو یې د خطاطانو بابا ادم باله. دا کتابونه یې چاپ شوي دي:

۱- نتیجه عشق(پښتو ناول)
۲- سیف الملوک( پښتو منظوم داستان)
۳- ستاره زمین(اردو ناول)
۴- سوانح انور بیگ(پښتو نظم)
۵- تاریخ افغانستان
۶- گلستان سعدي(پښتو ژباړه)
۷- پښتو افسانې
۸- لغات افغاني

۹- خزان د افغان
۱۰- صرف میر
۱۱- قواعد پښتو
۱۲- تاریخ بغداد
۱۳- اقوال حضرت علي (پښتو نظم) او نور
د سید راحت زاخېلي د شعر یوه بېلګه داده:

**کاش**

کاش چې په مینه کې څه دومره راحاصل وای | ته په زړه کې زړه د سترګـو مـقابل وای
هــــره ســا به مې فــریــاد وای چغې چغې | که دا حال مې د اظهــــار چېرته قابل وای
ای چې تاته زمــا عـشق نامــکمل ښکاري | که زه نه وای ستا ښایست بـه ناکامل وای
چې په شمعه پتنــــګان په شــوق ورځغلي | کاش چې دې ډله کې زه خو هم شامل وای
کــــه په قــــبر کې مې زړه هم ټوپ وهلای | لــــېونتوبه زه به هــله ســتا قــابل وای
کـــه تـــوپان ســـره جنګونه یې فطرت وای | زمــــا زړه به ویده ولې په ســاحـــل وای

په یوه نیــظر یې تېر کـــړی له کونینو
د راحت په قسمت کاش داسې قــاتل وای

ماخذونه:


۱- غوره نثرونه، ګل پاچا الفت، دانش خپرندویه ټولنه، پېښور، ۱۳۸۰هـ ل کال.
۲- د راحت افساني، افضل رضا.
۳- اوسني لیکوال دريې ټوکه، عبدالرؤف بېنوا، دولتي مطبعه کابل ۱۳۴۰، ۱۳۴۱، ۱۳۴۲هـ ل کلونه.
۴- داغستان، راحت زاخېلی، هېواد ورځپاڼه، دولتي مطبعه، کابل، ۱۳۲۳هـ ل کال.
۵- د پښتو نثر هنداره، پوهاند صدیق الله رښتین، یونیورستي بک ایجنسي، پېښور.
۶- پښتانه شعراء دریم ټوک، پښتو ټولنه، د تاریخ او ادبیاتو څانګه، دولتي مطبعه، ۱۳۴۲هـ ل کال.
۷- پښتو لنډه کیسه او ادبي ټوټه، سید نظیم سیدي، صمیم ادبي ټولنه، ۱۳۸۶هـ ل کال.

# یوویشتم لوست

## د تدریس د لارښود پلان

### د تدریس وخت: (درې درسي ساعتونه)

| د مطالبو سرلیکونه | د مطالبو شرحه |
|---|---|
| ۱_ د لوست موضوع | مور، ولې کیسې لولو؟ |
| ۲_ د زده کړې (پوهنیزې، مهارتي او ذهنیتي) موخې: | _ د علم پر اهمیت پوهېدنه.<br>_ د علم په حاصلولو سره اخلاقي سمون او د معلوماتو زیاتېدنه.<br>_ د علم په حاصلولو سره فکري وده او ذهني پراختیا.<br>_ د ولسي کیسو سره اشنایي پیداکول.<br>_ د کیسو لوستلو ته د زده‌کوونکو هڅونه او له هغو څخه گټه اخیستل.<br>_ د مولوي احمد له ژوند او آثارو سره اشنایي پیداکول.<br>_ د لوستلو او لیکلو د مهارت پیاوړتیا.<br>_ د اورېدلو او خبرو کولو د مهارت پیاوړتیا.<br>_ د نوو لغاتو زده کړه او په جملو کې کارونه. |
| ۳_ د تدریس لارې: | لوستل او لیکل، پوښتنې او ځوابونه، ډله ییز فعالیتونه، یو کسیز فعالیت. |
| ۴_ د تدریس وسیلې: | درسي کتاب، توره تخته، تخته پاک، تباشیر، کتابچه او قلم. |
| ۵_ د ارزونې لارې او وسیلې: | شفاهي ارزونه، عملي کار<br>د لوستلو، لیکلو او ډله ییز کار څارل او پایلې یې په کتابچه کې لیکل |
| ۶_ د زده کړې او تدریس فعالیتونه: | لومړنی فعالیت:<br>روغبړ، د حال احوال پوښتنه، د حاضرۍ اخیستل، د کورني کار کتنه |
| | د انگېزې رامنځته کول: د لاندې پوښتنې په طرح کولو سره د انگېزې پیدا کول:<br>کومه کیسه مو لوستې د چا او د څه په اړه وه؟ |

| د زده‌کوونکو فعالیتونه | ۱-۷ د ښوونکي فعالیتونه |
|---|---|
| - زده‌کوونکي متن په چوپه خوله لولي او بیا یې مقصد د ټولګي په وړاندې په خپلو خبرو کې څرګندوي.<br>- زده‌کوونکي د ښوونکي خبرو ته غوږ نیسي او خپلو نیمګړتیاو ته پاملرنه کوي.<br>- زده‌کوونکي د کیسې په اړه راغلې پوښتنې ځوابوي.<br>- زده‌کوونکي په متن کې نومونه او ضمیرونه پیدا کوي او څرګندوي چې کوم نومونه او کوم ضمیرونه دي.<br>- زده‌کوونکي د کیسې مطلب په خپلو الفاظو کې څرګندوي.<br>- په ډلو کې برخه اخیستل او د فعالیت سرته رسول.<br>- زده‌کوونکي له لارښوونې سره سم د تمرینونو په حلولو کې برخه اخلي.<br>- زده‌کوونکي د لارښوونې سره سم کورنۍ دنده یاداشت کوي او په کورونو کې یې بشپړوي. | ـ ښوونکی لارښوونه کوي چې زده‌کوونکي متن په چوپه خوله ولولي او بیا یې مقصد په خپلو خبرو کې څرګند کړي.<br>ـ د متن په لوستلو کې د زده‌کوونکو د تېروتنو سمول.<br>ـ هر زده‌کوونکي ته وخت ورکول چې پوښتنو ته ځوابونه ووایي.<br>ـ له زده‌کوونکو څخه ګرامري پوښتنې، لکه د نوم او ضمیرونو په اړه له مثالونو سره.<br>ـ د زده‌کوونکو هڅونه او تشویق چې د ټولګي په مخکې خبرې وکړي او د لوست لنډیز ووایي.<br>ـ د زده‌کوونکو وېشل په ډلو او هرې ډلې ته د فعالیت ټاکل.<br>ـ د تمرینونو په حلولو کې د زده‌کوونکو لارښوونه.<br>- ښوونکی د کورنۍ دندې په اړه سپارښتنه کوي. |

۷ـ د متن د ستونزمنو برخو روښانه کول:

ـ قاصد ځکه په ځنګلونو کې ګرځېده چې هغه ونه پیدا کړي چې مېوه یې د زړښت او مړینې د مخنیوي درمل دی.

ـ هغه پاچا ته داسې حقیقي مېوه وښودله چې څوک یې وخوري، نو رښتیا چې تل ژوندی وي او هغه مېوه علم دی.

ـ قاصد ته یې ډېر انعامونه ورکړل، د علم او عالمانو پالنې ته یې ډېره پاملرنه وکړه او حکم یې وکړ چې هر څوک دې د علم د حاصلولو لپاره متې راونغاړي.

ـ پاچا او عالم لومړني دوه کسه دي چې په کیسه کې راغلي، کله چې عالم د ونې په مېوې پسې ګرځي نو نور ډېر خلکویني او د هغې ونې پوښتنې ترې کوي. بیا هغه عالم ویني چې ده ته هغه رښتینې مېوه ورښیي چې څوک یې وخوري نو تل تر تله ژوندي وي.

ـ هغه ځای چې عالم د ونې او مېوې د موندنې لپاره پکې ګرځېده، هندوستان و.

۸ـ ښوونکي ته اضافي معلومات او ماخذونه:

ګنج پښتو د ۴۹ کیسو یوه ټولګه ده، لیکوال یې مولوي احمد دی. دا کتاب لومړی ځل په ۱۸۷۲م کال کې په کلید افغاني کې چاپ او خپور شوی دی، دویم ځل په ۱۲۳ مخونو کې په لاهور کې چاپ شوی او درېیم ځل په پېښور کې چاپ شوی دی.

د مولوي احمد په برخه کې ډېرو ادبپوهانو او ختیځ پوهانو غټې تېروتنې کړې دي، ځکه چې په پښتو ادب کې د احمد په نوم ډېر شاعران تېر شوي دي چې سره نه دي بېل شوي. د اثارو او اشعارو دیوانونه یې

موجود دي، خو زيات پلټل غواړي.
دلته زموږ مطلب د کيسې ليکونکی مولوي احمد دی. نوموړی د هشنغر د تنګي اوسېدونکی او په ختمه مسافرخېل احمدزی دی.
ده تر ۱۸ کلنۍ پورې بزګري کوله. بيا ورته د زده کړې شوق پيدا شو. په لږه موده کې يې په صرف، نحو، فقه، حديث او تفسير کې زده کړه وکړه چې بيا يې نورو طالبانو ته هم زده کړه ورکوله، دی يو ځيرک او ذکي سړی و. په لږه موده کې د پښتو ادب د ليکوال او شاعر په توګه مشهور شو.
نوموړي په خپلو ليکنو کې د عربي او فارسي کلمو په مقابل کې پښتو لغتونه، تعبيرونه او اصطلاحګانې رواج کړي دي.
د مولوي احمد شعرونه لږ ليدل شوي؛ خو په نثر کې د ډېرو غوره اثارو او تأليفاتو خاوند دی. مولوي احمد به هغو انګرېزانو ته چې پېښور ته د سياسي هدف لپاره راتلل پښتو ورزده کوله. هغه د پښتو څخه ناخبره خلک د پښتو په خوند پوه کړل. د مولوي احمد د پښتو نثر لمن ډېره ارته ده او د (ګنج پښتو) په نوم د کيسو مجموعه يې ډېر شهرت لري. بل اثر يې له (تاريخ فرشته) څخه د سلطان محمود د تاريخ ترجمه ده.
همدارنګه مفتاح القرآن، غل او قاضي، علم غيب، بيان او خاصيت د اسماء الله تعالی، مناجات او داسې نور يې غوره ليکنې دي.
د ژبې په هکله داسې وايي:
چې د چا په خوله کې خوږه ژبه غړېږي
د مچانو په شان خلک پرې ښېږي
د تورزن به په کار نه وي هومره توره
لکه ژبه چې هرځای کې وي منظوره
بده ژبه د سړي په ځان بلا شي
خوږه ژبه له سړي چاپېر کلا شي
نوموړي د ۱۲۲۱ - ۱۳۰۱ هـ ق کلو په شاوخوا کې ژوند کاوه.

ماخذونه:

۱. د پښتو ادبياتو معاصره دوره، ډاکټر زيور الدين، زيور. ۲. مولوي احمد، ګنج پښتو.

# دوه ویشتم لوست

## د تدریس د لارښود پلان

### د تدریس وخت: (درې درسي ساعتونه)

| د مطالبو سرلیکونه | د مطالبو شرحه |
|---|---|
| ۱ـ د لوست موضوع | خوږ ژبی شاعر سید حسن |
| ۲ـ د زده کړې (پوهنیزې، مهارتي او ذهنیتي) موخې: | ـ د پښتو ادب د معاصر دور د لیکوالو پېژندنه.<br>ـ د معاصرو لیکوالو له آثارو سره اشنایي.<br>ـ د هېواد د ځینو نومیالیو پېژندنه.<br>ـ د سید حسن له ژوند او شعر سره اشنایي پیدا کول.<br>ـ د معاصرو لیکوالو له اصلاحي، روزنیزو او اخلاقي لیکنو څخه د خپل ژوندانه په هوساینه کې ګټه اخیستل.<br>ـ په متن کې له بېلګو سره د نومځرو پېژندنه.<br>ـ د ژبنیو مهارتونو پیاوړتیا.<br>ـ نوي لغتونه زده کول او جملې جوړول. |
| ۳ـ د تدریس لارې: | لوستل او لیکل، پوښتنې او ځوابونه، ډله ییز فعالیتونه، یو کسیز فعالیت. |
| ۴ـ د تدریس وسیلې: | درسي کتاب، توره تخته، تخته پاک، تباشیر، کتابچه او قلم. |
| ۵ـ د ارزونې لارې او وسیلې | شفاهي ارزونه، عملي کار<br>د لوستلو، لیکلو او ډله ییز کار څارل او پایلې یې په کتابچه کې لیکل |
| ۶ـ د زده کړې او تدریس فعالیتونه: | لومړنی فعالیت:<br>روغبړ، د حال احوال پوښتنه، د حاضرۍ اخیستل، د کورني کار کتنه |
| | د انګېزې رامنځته کول: دلاندې پوښتنې په طرح کولو سره د انګېزې پیدا کول:<br>ـ کوم معاصر شاعر او لیکوال پېژنئ؟ |

| د زده‌کوونکو فعالیتونه | ۱-۲ د ښوونکي فعالیتونه |
|---|---|
| ـ د متن لوستل او د کتاب پوښتنو ته سم ځوابونه ویل.<br>ـ د ښوونکي خبرو ته غوږ نیول او د خپلو تېروتنو اصلاح کول.<br>ـ د ټولګي د کار تر سره کول او پوښتنو ته ځوابونه ویل.<br>ـ زده‌کوونکي په جملو کې ضمیرونه په نښه کوي او وایي چې کوم ضمیرونه دي.<br>- زده‌کوونکي د ټولګي په وړاندې د شعر مفهوم په خپلو خبرو کې څرګندوي.<br>- په ډله ییزو فعالیتونو کې برخه اخیستل.<br>- زده‌کوونکي نوي لغتونه معنا کوي بیا یې په جملو کې کاروي او هم د تمرینونو په حلولو کې برخه اخلي.<br>ـ کورنۍ دنده لیکي او په کور کې یې سرته رسوي. | ـ د متن په لوستلو کې د زده‌کوونکو لارښوونه او د هغو هڅونه چې پوښتنو ته ځوابونه ووایي.<br>ـ د متن په لوستلو کې د زده‌کوونکو د تېروتنو سمول.<br>ـ هر زده‌کوونکي ته وخت ورکول چې پوښتنو ته ځوابونه ووایي.<br>ـ له زده‌کوونکو څخه ګرامري پوښتنې کول، لکه د نومځرو په اړه له مثالونو سره.<br>ـ د زده‌کوونکو هڅونه او تشویق چې د ټولګي په مخکې خبرې وکړي او د لوست لنډیز ووایي.<br>ـ په ډلو د زده‌کوونکو وېشل او هرې ډلې ته د فعالیت ټاکل.<br>- د لغتونو معنا کول، په جملو کې کارول او تمرینونو په حلولو کې د زده‌کوونکو لارښوونه. |

۷ـ د متن د ستونزمنو برخو روښانه کول:

چارباغ د لغمان ولایت یوه ولسوالۍ ده، همدارنګه خوږیاڼي د ننګرهار ولایت یوه ولسوالۍ ده.

اړودوړ: ګډوډي، اغتشاش.

شانه: ږمنځ

۸ـ ښوونکي ته اضافي معلومات او ماخذونه:

سید حسن خان د سید حسین زوی د سید غلام احمد لمسی و. کورنۍ یې د کونړ له سیدانو څخه وه؛ خو دی په (۱۲۷۰) هـ ل کال د لغمان په چارباغ کې زېږېدلی و.

نوموړي متداوله علوم لکه: فقه، تفسیر او نور په خپل کلي کې ولوستل او د نورو زده کړو لپاره په عسکري لیسه کې شامل شو او د ژوند په اخر وخت کې یې د فرقه مشر په حیث دنده ترسره کوله.

که څه هم دده مسلک نظامي (عسکري) و، خو له پښتو ادب سره یې مینه لرله. پر پښتو سربېره په دري کې هم د ښه قلم خاوند و.

سید حسن خان به تل خپل تخلص حسن لیکه، خو کله کله به یې (شیون) هم خپراوه. هغه د خپل هېواد او هېوادوالو لپاره ډېر شعرونه ویلي دي. د نوموړي اشعار انتقادي، اصلاحي او اجتماعي بڼه لري.

خدایﷻ هغه ته ډېر لوړ فکري او شعري استعداد ورکړی و، د سعدي یو دري شعر یې په پښتو داسې ژباړلی دی:

بنیادم واړه د یو وجود اعضا دي

پیدا ایښت کې یو جوهر څنې پیدا دي

زمانه که یو اندام ترې ناقرار کړي

ارامي د ټول وجود څنې فرار کړي
چې غمجن نه وي په غم د ټول عالم
نه ښاييږي چې يې نوم شي بنيادم
سيد حسن خان خپل ژوند څه په چارباغ او څه په خوږيانو کې تېر کړی و. نوموړي په نظامي او ادبي چارو کې د قدر وړ خدمتونه کړي دي. په خوږيانو کې يې د (کورغم) په نامه يو اخبار هم ليکه. خدای بښلی په ۱۳۱۹ هـ ش کال په کابل کې مړ شو او د (جابر انصار) په هديره کې خاورو ته وسپارل شو.


ماخذونه:
۱ـ اوسني ليکوال، عبدالرؤف بېنوا.
۲ـ قربانيان مشروطيت، پوهنيار سيد مسعود.

# درویشتم لوست

## د تدریس د لارښود پلان

### د تدریس وخت: (درې درسي ساعتونه)

| د مطالبو سرليکونه | د مطالبو شرحه |
|---|---|
| ۱ـ د لوست موضوع | د اپينو زيانونه |
| ۲ـ د زده کړې (پوهنيزې، مهارتي او ذهنيتي) موخې: | ـ په دې پوهيدل چې نشه يي توکي حرام دي.<br>ـ په دې پوهېدل چې د اپينو کارول مادي، معنوي او بدني زيانونه لري.<br>ـ د اپينو په ضررونو پوهېدل.<br>ـ د معتادينو په ژوند خبرېدل.<br>ـ د ګرامري جوړښتونو، لکه: نوم، صفت، موصوف او نومځري پېژندل.<br>ـ د ژبنيو مهارتونو، لکه: د لوستلو، اورېدلو، ليکلو او ويلو پياوړتيا .<br>ـ نوي لغتونه زده کول او جملې جوړول. |
| ۳ـ د تدريس لارې: | لوستل او ليکل، پوښتنې او ځوابونه، ډله ييز فعاليتونه، يو کسيز فعاليت. |
| ۴ـ د تدريس وسيلې: | درسي کتاب، توره تخته، تخته پاک، تباشير، کتابچه او قلم. |
| ۵ـ د ارزونې لارې او وسيلې: | شفاهي ارزونه، عملي کار<br>د لوستلو، ليکلو او ډله ييز کار څارل او پايلې يې په کتابچه کې ليکل |
| ۶ـ د زده کړې او تدريس فعاليتونه: | لومړنی فعاليت: روغبړ، د حال احوال پوښتنه، د حاضرۍ اخيستل، د کورني کار کتنه |
| | د انګېزې رامنځته کول: د لاندې پوښتنې په طرح کولو سره د انګېزې پيدا کول:<br>ـ تاسې کوم نشه يي پېژنئ؟ که يې پېژنئ نو په اړه يې خبرې وکړئ. |

| د زده‌کوونکو فعالیتونه | ۱-۲ د ښوونکي فعالیتونه |
| --- | --- |
| ـ د متن لوستل او د کتاب پوښتنو ته سم ځوابونه ویل.<br>ـ د ښوونکي خبرو ته غوږ نیول او خپلو تېروتنو ته متوجه کېدل.<br>- زده‌کوونکي د ښوونکي پوښتنو ته ځوابونه وایي.<br>- زده‌کوونکي ګرامري پوښتنې ځوابوي.<br>- زده‌کوونکي په وار سره د اپینو په زیانونو غږېږي.<br>- په ډلو کې د فعالیتونو سرته رسول.<br>- زده‌کوونکي د تمرین پوښتنې حلوي.<br>- زده‌کوونکي کورنۍ دنده اخلي او په کورونو کې یې بشپړوي. | ـ د متن په لوستلو کې د زده‌کوونکو لارښوونه او د هغو هڅونه چې پوښتنو ته ځوابونه ووایي.<br>ـ د متن په لوستلو کې د زده‌کوونکو د تېروتنو سمول.<br>ـ متوسط او ضعیف زده‌کوونکي هڅول چې پوښتنو ته ځوابونه ووایي.<br>ـ له زده‌کوونکو څخه ګرامري پوښتنې کول.<br>- د زده‌کوونکو هڅونه چې د ټولګي په مخکې خبرې وکړي او د لوست لنډیز ووایي.<br>ـ په ډلو د زده‌کوونکو وېشل او هرې ډلې ته د فعالیت ټاکل.<br>ـ د تمرینونو په حلولو کې د زده‌کوونکو لارښوونه.<br>- ښوونکی کورنۍ دنده سپاري. |

۷ـ د متن د ستونزمنو برخو روښانه کول:

د درس مفهوم دادی چې ټول نشه یي توکي حرام دي. اسلام یې کارول او سوداګري منع کړې ده. نشه د انسان د جسمي او اروايي زیان لامل ګرځي. د نشه یي توکو تولید په نړیوالو ټولنو کې د یوې ټولنې اعتبار کمزوری کوي. انسان ته اقتصادي زیان رسوي یعنې نشه یي توکي په پیسو پېري، چې ناروغه شي بیا یې د روغېدو لپاره په درملو پیسې ورکوي، همدارنګه کار نه شي کولای او د کورنۍ پر اوږو بار وي. دا هر څه د انسان په زیان دي؛ نو انسان باید له زیان څخه ځان وژغوري.

۸ـ ښوونکي ته اضافي معلومات او ماخذونه:

اخلاقي انحطاط، د حافظې کمزوري او د جنسي لېوالتیا کمزري د نشه یي توکو نور زیانونه دي. اخلاقي انحطاط یا کمزورتیا دې ته وایي چې د ټولنیزو منل شوو اخلاقي معیارونو او ارزښتونو پر خلاف چلند وشي. ښوونکی دې پر دې معلوماتو سربېره نور معلومات هم ترلاسه کړي او زده‌کوونکو ته دې ورسوي، چې هغوی د نشه یي توکو زیانونه وپېژني او ځان ترې وساتي. دادی دلته په ټولیزه توګه د مخدره موادو په اړه معلومات درکوو:

لومړی باید په دې پوه شو چې مخدره توکي څه ته وایي؟ بیا یې په هر اړخیزو زیانونو خبرې وکړو.

پر مخدره توکو روږدېدل هغه متناوب او پرله پسې مسمومیت دی چې د مخدره توکو له کارولو څخه په مصرفوونکي کې پیدا کېږي او د ځاني او روحي زیانونو سبب ګرځي چې پایله یې ځاني او ټولنیزې ستونزې وي.

له نشه یي توکو سره تړاو چې ترک کول یې مصرف کوونکي ته ناشونی او یا هم سخت ښکاري روږدوالی (اعتیاد) بلل کېږي. اعتیاد هغه وخت منځته راځي چې روږدی شخص په پرله پسې توګه مخدره توکي لکه (اپین، هیرویین، مورفین، چرس، نسوار، سګرټ، شراب او نور...) استعمال کړي او علاقه یې دومره ورسره زیاته شي چې پرېښودل یې ورته ګران او ناممکن برېښي، دغه حالت ته معتاد وایي.

که څه هم په نشه یي او مخدره توکو ککړ کسان ځینې وخت دا نه مني چې معتاد دی؛ خو دا یو حقیقت دی چې انکار ترې نه شي کېدای.
هېڅوک نه غواړي چې د اعتیاد په بلا اخته شي، (په مخدره موادو روږدی شي) او خلک دې ورته پوه ړي، چرسي او شرابي ووایي خو د لومړۍ ورځې تېروتنه یې په دغه بلا اخته کړي چې بیا ترې نه خلاصېږي.
په مخدره توکو د اخته کېدو بل لامل د ناوړه ملګرو او دوستانو سره ناسته ولاړه ده. دغه ډول ملګري، دوستان نه بلکې دښمنان وي، ځکه چې د مخدره توکي له زیان او ضرره ښه خبر وي، خو بیا هم ځانونه چوپ او غلي ونیسي او یو شمېر خو یې دغې بدمرغۍ لارې ته د راکښلو تبلیغات هم کاروي.
یو شمېر خلک لویه اشتباه او تېروتنه کوي او نشه د غمونو، خپګان، سوچ او فکر د کمولو یا لرې کولو یوازینی دارو او درمل بولي حال دا چې داسې نه ده، ځکه هغه د پښتو متل دی چې (د څڅوبې نه لاړې؛ ناوې ته ودرېدې) د مصیبتونو نه د خلاصي یوازنی لاره د اسلامي او انساني غوره لارو عملي کول دي او له خدای ﷻ څخه مرسته غوښتل دي، نه نشې ته مخه کول، هیله ده چې زموږ هلې ځلې د ټولنې د غړو سره د مرستې لپاره د نشې نه د پاکې ټولنې په جوړولو کې مرسته وکړي.

ماخذ:
آګاهي از اضرار مواد مخدر، ریاست انکشاف نصاب تعلیمي، بخش مواد مخدر، سال ۱۳۸۷هـ ش، تهیه و ترتیب شمس الاسلام (جمالي).

# څلرویشتم لوست

## د تدریس د لارښود پلان

**د تدریس وخت: (درې درسي ساعتونه)**

| د مطالبو سرليکونه | د مطالبو شرحه |
|---|---|
| ۱ـ د لوست موضوع | عبد الرحمان بابا |
| ۲ـ د زده کړې (پوهنيزې، مهارتي او ذهنيتي) موخې: | ـ د پښتو ادب سره اشنايي پیدا کول.<br>ـ د پښتو ژبې د کلاسیکو شاعرانو په اړه معلومات پیدا کول.<br>ـ د لوستلو او غوږ نیولو د مهارت پیاوړي کول.<br>ـ د رحمان بابا له ژوند او شعر سره د زده‌کوونکو اشنایي.<br>ـ په ولس کې د رحمان بابا د عام مقبولیت په وجه پوهیدل.<br>ـ د رحمان بابا د شعر د ځینو اړخونو پېژندل.<br>ـ د رحمان بابا د شعرونو په لوستلو سره د لوستلو د مهارت پیاوړي کول.<br>ـ په درس کې د نوو لغتونو سره اشنايي پیدا کول.<br>ـ په جملو کې د لغتونو د استعمال د مهارت پیاوړي کول. |
| ۳ـ د تدریس لارې: | لوستل او لیکل، پوښتنې او ځوابونه، ډله ییز فعالیتونه، یو کسیز فعالیت. |
| ۴ـ د تدریس وسیلې: | درسي کتاب، توره تخته، تخته پاک، تباشیر، کتابچه او قلم. |
| ۵ـ د ارزونې لارې او وسیلې: | شفاهي ارزونه، عملي کار<br>د لوستلو، لیکلو او ډله ییز کار مشاهده او د ځارنې پایلې یې په کتابچه کې لیکل |
| ۶ـ د زده کړې او تدریس فعالیتونه: | لومړنی فعالیت:<br>روغبړ، د حال احوال پوښتنه، د حاضرۍ اخیستل، د کورني کار کتنه |
| | د انگېزې رامنځته کول:<br>ـ د انگېزې پیدا کولو لپاره په تخته باندې د رحمان بابا دا مشهور بیت لیکل:<br>کوهی مه کنه د بل سرې په لار کې<br>چیرې ستا به د کوهي په غاړه لار شي<br>ښوونکی دې له زده‌کوونکو څخه وغواړي چې په شعر بحث وکړي او شاعر یې پیدا کړي. |

| ۱-۶ د ښوونکي فعاليتونه | د زده‌کوونکو فعاليتونه |
|---|---|
| ـ د متن په لوستلو کې د زده‌کوونکو لارښوونه او د هغو تشويق او هڅونه چې د رحمان بابا په اړه معلومات وړاندې کړي.<br>ـ د متن په لوستلو کې د زده‌کوونکو د تېروتنو سمول.<br>ـ هر زده‌کوونکي ته وخت ورکول چې پوښتنو ته ځواب ووايي.<br>ـ لـه مثـالونو سـره د نـوم او صـفت پـه اړه لـه زده‌کوونکو څخه ګرامري پوښتنې کول.<br>ـ د زده‌کوونکو هڅونه او تشويق چې د ټولګي په مخکې خبرې وکړي او د لوست لنډيز ووايي.<br>ـ په ډلو د زده‌کوونکو وېشل او هرې ډلې تـه د فعاليت ټاکل.<br>- د لغتونـو پـه معنـا کولـو، جملـو جوړولـو او د تمرينونو په حلولو کې د زده‌کوونکو لارښوونه.<br>- ښـوونکی د کـورنۍ دنـدې پـه اړه معلومـات ورکوي. | ـ د متن لوستل او د رحمان بابا په اړه د معلوماتو وړاندې کول.<br>ـ د ښوونکي خبرو ته غوږ نيول او د ښوونکي په لارښوونه خپلې تېروتنې سمول.<br>ـ د ټولګي د کار تر سره کول او پوښتنو ته ځوابونه ويل.<br>ـ زده‌کـوونکي د نـوم او صـفت کلمـې پـه مـتن کـې پيـدا کوي او يا مثالونه يې په خپله خوښه وړاندې کوي.<br>- زده‌کوونکي د رحمان بابا د شعر مفهوم په خپلو خبرو کې څرګندوي.<br>- په ډله ييزو فعاليتونو کې کارنده ونډه اخيستل.<br>- زده‌کـوونکي نوي کلمې معنـا کـوي، پـه جملو کې يې کاروي او د تمرينونو په حلولو کې برخه اخلي.<br>- زده‌کوونکي غوږ نيسي، کورنۍ دنده يادداشت کوي او په کورونو کې يې بشپړوي. |

۷ـ د متن د ستونزمنو برخو روښانه کول:

ـ رحمان بابا يو صوفي شاعر دی په ۱۰۴۲ هـ ق کال زيږېدلی او تر ۱۱۲۸ هـ ق کال پورې ژوندی و. ديوان يې په پېښور او کابل کې چاپ شوی دی. په ولس کې د بابا په نامه شهرت لري او خلک يې په ديوان باندې فالونه ګوري.

ـ رحمان بابا د پېښور په بهادر کلي کې زيږېدلی دی او د پېښور په هزارخانۍ هديره کې ښخ دی.

ـ رحمان بابا له ملامحمد يوسف يوسفزي څخه په پېښور کې زده کړه وکړه او بيا د نورې زده کړې لپاره کوهاټ ته لاړ او هلته يې نورې زده کړې وکړې.

ـ د رحمان بابا شعرونه ځکه په ولس کې عام دي چې ژبه يې روانه او ساده ده. د اجتماعي اخلاقو ښوونه پکې شوې، له خدای ﷻ سره مينه او ديني لارښوونې پکې راغلي دي.

ـ د رحمان بابا د شعر ځانګړتيا، رواني او ساده ګي ده. د رحمان بابا په شعر کې هر ډول موضوعات راغلي دي.

ديني اخلاقي او عرفاني مسايل پکې ډېر دي.

عشقي شعرونه هم لري خو د ده عشق او مينه له خدای ﷻ سره ده.

۸ـ ښوونکي ته اضافي معلومات او ماخذونه:

ـ د پښتو ادبياتو منځنۍ (کلاسيکه دوره)

د پښتو ادب په تاريخ کې درې دورې ټاکل شوي دي:

۱ـ لرغوني دوره له ۱۳۹ هـ . ق . يعنې د امير کروړ له شعر څخه پيل او تر پير روښان پورې رارسيږي.

۲ـ منځنۍ کلاسيکه دوره له پيرروښان څخه پيل او تر سراجي دور پورې چې د پښتو ژبې او ادب په برخه کې نوې هلې ځلې پيل کېږي رارسي. هيره دې نه وي چې د معاصرې دورې مقدمات د انګريزانو لـه راتګ نه وروسته کلونو کې جوړېږي.

په منځنۍ دوره کې درې ادبي نهضتونه مشهور دي، لکه د روښانیانو سیاسي او ادبي نهضت د خوشحال خان او د هغه د پیروانو سیاسي او ادبي نهضت او د هوتکو ملي ادبي نهضت.
۳_ د معاصرې دورې مقدمات د انګریزانو له راتګ څخه وروسته جوړېږي او بیا په سراجي دور کې د سراج الاخبار په خپرېدو معاصره دوره پیل کېږي چې تر ننه رارسي. په معاصره دوره کې هم مختلف ادبي پړاونه شته.
۴_ پټه خزانه: د محمد هوتک اثر دی چې په ۱۱۴۲ هـ . ق . کال د شاه حسین هوتک په سپارښتنه لیکل شوی دی. په دې کتاب کې درې خزانې راغلي دي. لومړۍ خزانه د تیرو شاعرانو احوال دویمه خزانه د محمد هوتک د زمانې شاعران درېمه خزانه د هغو ښځو شاعرانو احوال چې شعرونه یې ویلي دي.
ریاضت: د نفس د پاکولو لپاره رېږ ګالنه، د تفکر او عبادت لپاره ګوښه کیناستل.
صوفي: د تصوف د طریقت پیرو، د وړینو جامو اغوستونکی، پاک نفس، تزکیه شوی
عابد: عبادت کوونکی، رب لمانځونکی.
عارف: خدایﷻ پېژندونکی، د معرفت خاوند، پوه او هوښیار
اعجاز: معجزه
د رحمان بابا ځانګړې لار: د رحمان بابا ځانګړې لاره تصوفي ادبي او عرفاني لاره ده.

ماخذونه:


_ پټه خزانه، محمد هوتک
_ د رحمان بابا کلیات، حنیف خلیل
_ رحمان بابا، دوست محمد کامل مومند
_ د عبدالرحمان مومند یاد، د زلمي هېواد مل ترتیب او تدوین
_ د رحمان بابا د سیمنار د مقالو مجموعه، د اطلاعاتو او فرهنګ وزارت چاپ

# پنځه ویشتم لوست

## د تدریس د لارښود پلان

**د تدریس وخت: (درې درسي ساعتونه)**

| د مطالبو سرليکونه | د مطالبو شرحه |
| --- | --- |
| ۱ـ د لوست موضوع | اوبه اوچاپيريال |
| ۲ـ د زده کړې (پوهنيزې، مهارتي او ذهنيتي)موخې: | ـ د اوبو پر اهميت او گټو پوهېدل.<br>ـ د اوبو د سرچينو پېژندل.<br>ـ د اوبو د پاکو ساتلو د احساس روزل.<br>ـ د اوبو په کارولو کې اسراف نه کول او د زېرمه کولو لپاره يې هڅول.<br>ـ د ځينو گرامري جوړښتونو پېژندل.<br>ـ د ژبنيو مهارتونو پياوړتيا .<br>ـ نوي لغتونه او جملې زده کول. |
| ۳ـ د تدريس لارې: | لوستل او ليکل، پوښتنې او ځوابونه، ډله ييز فعاليتونه، يو کسيز فعاليت. |
| ۴ـ د تدريس وسيلې: | درسي کتاب، توره تخته، تخته پاک، تباشير، کتابچه او قلم. |
| ۵ـ د ارزونې لارې او وسيلې: | شفاهي ارزونه، عملي کار<br>د لوستلو، ليکلو او ډله ييز کار څارل او پايلې يې په کتابچه کې ليکل |
| ۶ـ د زده کړې او تدريس فعاليتونه: | لومړنی فعاليت: روغبړ، د حال احوال پوښتنه، د حاضرۍ اخيستل، د کورني کار کتنه |
| | د انگېزې رامنځته کول: د لاندې پوښتنې په طرح کولو سره د انگېزې پيدا کول:<br>که اوبه نه وي، نو څه به پيښ شي؟ |

| ۱-۲ د ښوونکي فعالیتونه | د زده‌کوونکو فعالیتونه |
|---|---|
| ـ ښوونکی لارښوونه کوي چې زده‌کوونکي متن په لوړ غږ ولولي.<br>ـ د متن په لوستلو کې د زده‌کوونکو د تېروتنو سمول.<br>ـ هر زده‌کوونکي ته وخت ورکول چې پوښتنو ته ځوابونه ووايي.<br>ـ له زده‌کوونکو څخه د نوو کلمو معنا او په جملو کې د کارولو غوښتنه.<br>ـ د زده‌کوونکو هڅونه چې د ټولګي په مخکې خبرې وکړي او د لوست لنډيز ووايي.<br>ـ په ډلو د زده‌کوونکو وېشل او هرې ډلې ته د فعاليت ټاکل.<br>ـ د تمرينونو په حلولو کې د زده‌کوونکو لارښوونه.<br>- ښوونکی د کورنۍ دندې په اړه زده‌کوونکو ته لارښوونه کوي. | - زده‌کوونکي متن په لوړ غږ لولي.<br>- زده‌کوونکي د ښوونکي له خوا خپلو تېروتنو ته متوجه کېږي او هغه سموي.<br>- زده‌کوونکي نوي کلمې معنا کوي او په جملو کې يې استعمالوي.<br>- زده‌کوونکي د اوبو پر اهميت او منابعو خبرې کوي.<br>- په ډله ييزو فعاليتونو کې برخه اخيستل.<br>- زده‌کوونکي د ښوونکي په لارښوونه د تمرينونو په حلولو کې برخه اخلي.<br>زده‌کوونکي غوږ نيسي او د لارښوونې سره سم په کورونو کې کورنۍ دنده سرته رسوي. |

۷ـ د متن د ستونزمنو برخو روښانه کول:

- چاپېريال: زموږ په شاوخوا (ځمکه او هوا کې) ټولو موجوداتو ته چاپېريال وايي.
- ورشوګانې: هغه شنه ځايونه چې ډېر واښه او ګلان ولري.
- ښېرازي: وده کول، زرغونېدل، ښکلا، ښايست.
- تلوي: چې مصدر يې تلول دی، په غوږو کې خوراکي توکي سره کول.
- نخيل، ونه، د خرما ونه.
- سپما: زېرمه، پس انداز.

۸ـ ښوونکي ته اضافي معلومات او ماخذونه:

ښاغلی ښوونکی دې د خپل تدريسي چاپېريال په پام کې نيولو سره د اوبو د پاکو ساتلو او پاکولو د طريقو (اوبه اېشول او په ساده طريقه د اوبو فلتر کول) شاګردانو ته وروښيي.

د ځمکو او ونو بوټو د خړوبولو لپاره د موقتي اوبو د جمع کولو طريقه. د تنګيو او خوړګيو اوبه د لويو حوضونو په ډول بندول او د اړتيا په مهال ترې ګټه اخيستل.

ښوونکی بايد د اوبو د انرژۍ (برېښنا) په اړه هم زده‌کوونکو ته معلومات ورکړي. مثلاً ژرندې پرې چلېږي او د برېښنا بندونه پرې جوړېږي. ښوونکی دې زده‌کوونکو ته ځينې د برېښنا بندونه لکه درونټه، سروبی، نغلو، کجکی، چک وردګ، پلخمرې، جبل سراج، خان اباد او نور وروپېژني.

په افغانستان کې د چاپېريال ساتنې ملي اداره (NEPA) د بن د پرېکړو له مخې رامنځته شوه. دا اداره دنده لري چې د خلکو د پوهاوي لپاره مشخص پلانونه او پروګرامونه جوړ کړي او په ټولنه کې د چاپېريال د ساتنې مختلفې لارې ولټوي او عملي يې کړي، چې په دې برخه کې يې د ۱۳۸۷هـ ل کال د ثور په مياشت

کې د لومړنۍ مشورتي شورا د غونډې لپاره د ۳۴ ولایتونو والیان او نورو نهادونو مشران راوغوښتل او د چاپېریال ساتنې په اړه یې مناسبې پرېکړې وکړې.
همدارنګه د چاپېریال ساتنې ادارې د هماهنګۍ (همغږۍ) کمېټې جوړې کړې چې ۲۲ وزارتونه او ټولنیزې ادارې پکې برخه لري. دغه کمېټې د کار د هماهنګۍ په برخه کې په میاشت کې یو ځل غونډه کوي او د چاپېریال ساتنې د کارونو لپاره سالمې پرېکړې کوي او د تطبیق لپاره یې په ګډه سره کار کوي.
د چاپېریال ساتنې دیني ګټې: لوی خدایﷻ او د هغه رسولﷺ دواړه د پاکۍ د ساتلو په اړه مسلمانانو ته هدایت کوي.
خدای پاکﷻ فرمایي: (بېشکه چې اللهﷻ توبه کوونکي او پاک خلک خوښوي). همدارنګه زموږ پیغمبرﷺ فرمایي: (پاکي د ایمان نیمایي برخه ده).
که څه هم په دې اړه نور ډېر الهي او نبوي احکام موجود دي خو همدغه پورتنۍ لارښوونې زموږ لپاره کافي دي؛ ځکه چې موږ مسلمانان یو او مسلمان باید د خپل خدایﷻ او رسولﷺ امر ومني. خپل ځان او چاپېریال پاک وساتي چې دین او دنیا یې دواړه ښکلي شي.
د ونو، بوټو نالول (ایښودل) د چاپېریال په پاک ساتلو کې تر نورو هر څه زیاته ونډه لري. علمي تحقیقاتو دا ثابته کړې ده چې ونې سربېره پر دې چې محیط پاک او ښکلی ساتي د اکسیجن کیفیت هم ساتي، په دې معنا چې یوه ونه د اتلسو کسانو لپاره اکسیجن برابروي که اوبه نه وي؛ بیا نو ونې، بوټي هم نه زرغونېږي او چاپېریال به هم خراب او ګډوډ وي.
له بله پلوه ونې بوټي د خدایﷻ ثنا وایي او اجر یې نالوونکي (ایښودونکي) ته هم رسي.
انسان یو ټولنیز مخلوق دی، نېک او بد عملونه یې نېغ په نېغه په ټولنه اثر غورځوي له همدې کبله یې د ټولنې په وړاندې مسؤولیت هم دروند او د پاملرنې وړ دی.
څرنګه چې د نړۍ ښکلا، ښېرازي، آبادي او بربادي ټول د انسان په عمل پورې تړلي دي؛ نو په کار ده، چې د طبعي منابعو د بربادۍ، نابودۍ او تخریب مخه ونیسو او پرې نه ږدو چې په خپل لاس خپل ځان د نابودۍ کندې ته وغورځوو. خپل چاپېریال پاک وساتو او خپله اسلامي او ملي دنده په پوره ایمانداري ترسره کړو. دا کار ډېر آسانه دی خو یوازې او یوازې د مسؤولیت احساس غواړي او بس.
که موږ د انساني او اسلامي اصولو له مخې د خپل ځان، کور، کلي او شاوخوا د پاک ساتلو عادت خپل کړو او تر څنګ یې د چاپېریال د لا ښکلا او سمسورتیا لپاره د طبعي منابعو د ساتلو هڅه هم وکړو؛ نو تر یوه حده به مو ژوند د طبعي افتونو او ناروغیو څخه ژغورلی وي، د بېلګې په توګه:
که موږ د کور خاورې خځلې بېځایه ونه غورځوو، د چټلیو مخه نیول کېږي او مرضونه له منځه ځي.
که موږ په خپل کور، باغ او ځمکه کې ګلان، بوټي او نیالګي کېنوو د هوا د ککړتیا مخه نیول کېږي.
که موږ اوبه بېځایه او په اسراف مصرف نه کړو اود احتیاط نه کار واخلو؛ نو له یوې خوا د ختو او ډنډونو د جوړېدو مخه نیول کېږي، میاشې او مکروبونه له منځه ځي او له بلې خوا د اوبو سپما ترسره کېږي.
که موږ ونې بې وخته او بې ځایه غوڅې کړو او پر ځای یې نور نیالګي نال نه کړو، نو د اکسیجن د نشتوالي او کموالي له کبله هوا او چاپېریال ککړېږي او راز، راز روغتیایي او ټولنیزې ستونزې رامنځته کېږي او انسان له کړاو سره مخ کېږي.
د پورتنیو څرګندونو په تړاو موږ ټولو ته د انساني خواخوږۍ او اسلامي لارښوونو په رڼا کې په کار ده چې هم پخپله د چاپېریال د پاک ساتلو په کلکه خیال وساتو او هم نور خلک دغې لارې ته راوبولو او د خپل ځان

خدمت پخپله ترسره کړو، تر هر څه لومړی باید د اوبو د موجودیت او ضرورت پر اهمیت ځان پوه کړو، ځکه چې د ژوند ټول امکانات د اوبو په واسطه ترلاسه کېږي. نو په کار ده چې د اوبو د منابعو د تحفظ او پاکوالي لپاره جدي گامونه پورته کړو.

ماخذونه:
۱ـ په افغانستان کې صنایع او په ملي اقتصاد کې دهغو ونډه، پوهنوال محمدبشیر دودیال، د اریک گرځنده کتابتونو اداره، ۱۳۸۲هـ ل کال.
۲ـ اوبه او چاپېریال، پوهاند حسن یار.
۳- د افغانستان اقلیم او د ژوند چاپېریال، پوهاند غلام جیلاني عارض، ژباړن څېړونکی مسافر رئیس خېل، د اریک گرځنده کتابتونونو اداره، ۱۳۸۱هـ ل کال.
۴- ماهنامۀ ادارۀ ملی محیط زیست، ۱۳۸۷هـ ل کال، د کب میاشت، یوولسمه گڼه، لومړی کال.

# شپږویشتم لوست

## د تدریس د لارښود پلان

### د تدریس وخت: (درې درسي ساعتونه)

| د مطالبو سرلیکونه | د مطالبو شرحه |
|---|---|
| ۱ـ د لوست موضوع | احمد شاه بابا ـ ملي مشر او شاعر |
| ۲ـ د زده کړې (پوهنیزې، مهارتي او ذهنیتي)موخې: | ـ د خپل سیاسي تاریخ سره اشنایي پیدا کول.<br>ـ د ملي نومیالیو پېژندل.<br>ـ د احمد شاه بابا له ژوند او کارونو څخه خبرېدل.<br>ـ احمد شاه بابا د یو شاعر په توګه پېژندل.<br>ـ د احمد شاه بابا د وخت په فرهنګي او ادبي حالت پوهېدل.<br>ـ د لوستلو او لیکلو د مهارتونو پیاوړي کول.<br>ـ د ځینو ګرامري قواعدو پېژندل او زده کول. |
| ۳ـ د تدریس لارې: | لوستل او لیکل، پوښتنې او ځوابونه، ډله ییز فعالیتونه، یو کسیز فعالیت. |
| ۴ـ د تدریس وسیلې: | درسي کتاب، توره تخته، تخته پاک، تباشیر، کتابچه او قلم. |
| ۵ـ د ارزونې لارې او وسیلې: | شفاهي ارزونه، عملي کار<br>د لوستلو، لیکلو او ډله ییز کار څارل او پایلې یې په کتابچه کې لیکل |
| ۶ـ د زده کړې او تدریس فعالیتونه: | لومړنی فعالیت:<br>روغبړ، د حال احوال پوښتنه، د حاضرۍ اخیستل، د کورني کار کتنه |
| | د انګېزې رامنځته کول: د لاندې پوښتنې په طرح کولو سره د انګېزې پیدا کول:<br>ـ داسې کوم پښتون پاچا پېژنئ چې شعر یې ویلی وي؟ |

| ۱-۲ د ښوونکي فعالیتونه | د زده‌کوونکو فعالیتونه |
|---|---|
| ـ ښوونکی دې د زده‌کوونکو په یوه ډله د متن یو یو پراګراف ولولي او د بلې ډلې په یو یو تن دې معنا کړي.<br>ـ د متن په لوستلو کې د زده‌کوونکو د تېروتنو سمول.<br>ـ هر زده‌کوونکي ته وخت ورکول چې پوښتنو ته ځوابونه ووایي.<br>ـ له زده‌کوونکو څخه له مثالونو سره د نوم او صفت په اړه ګرامري پوښتنې<br>ـ د زده‌کوونکو هڅونه او تشویق چې د ټولګي په مخکې خبرې وکړي او د لوست لنډیز ووایي.<br>ـ په ډلو د زده‌کوونکو وېشل او هرې ډلې ته د فعالیت ټاکل.<br>ـ د تمرینونو په حلولو کې د زده‌کوونکو لارښوونه.<br>- د کورنۍ دندې موضوع او اړخونه یې روښانه کول. | - یوه ډله زده‌کوونکي د متن یو یو پراګراف لولي او د بلې ډلې یو یو تن زده‌کوونکی یې مفهوم وایي.<br>ـ د ښوونکي خبرو ته غوږ نیول او خپلو تېروتنو ته متوجه کېدل او د هغوی سمول.<br>ـ د ټولګي د کار ترسره کول او پوښتنو ته ځوابونه ویل.<br>- په متن کې د نوم او صفت د کلمو پیدا کول او په مثالونو کې یې وړاندې کول.<br>- زده‌کوونکي د احمد شاه بابا د مهمو کارونو په اړه خبرې کوي.<br>- په ډله ییزو فعالیتونو کې برخه اخیستل.<br>- زده‌کوونکي د ښوونکي د لارښوونو سره سم د تمرینونو په حلولو کې برخه اخلي او پوښتنې ځوابوي.<br>- زده‌کوونکي غوږ نیسي. په کورنۍ دندې ځان پوهوي او په کورونو کې یې بشپړوي. |

۷ـ د متن د ستونزمنو برخو روښانه کول:

ماوراء النهر ـ د سیند نه آخوا، پورې غاړې. دلته مقصد د آمو سیند له پورې غاړې څخه دی.

روښاني غورځنګ= د بایزید روښان په مشرۍ د مغلو په مخالفت کې یو غورځنګ و چې په لسمه هجري پېړۍ کې د بایزید روښان په مشرۍ رامنځته شو.

ایمل خان مومند او دریا خان اپریدی: دا دواړه د پښتنو زړور او ننګیالي مشران وو چې په اتلسمه پېړۍ کې د خوشال خان سره یوځای په ډېره مېړانه د وطن له دښمنانو (بهرنیو) سره وجنګېدل.

نادر افشار (۱۱۰۰- ۱۱۲۰ هـ ق) د افشاري لړۍ مؤسس و، خپل نوم یې نادر قلي و، په ۱۷ کلنۍ کې ازبکانو اسیر کړ. مور یې د اسارت په وخت کې مړه شوه. څو کاله بندي و بیا وتښتېد. څه موده وروسته یې د ملک محمود سیستاني سره مخالفت پیدا شو او په دې مخالفت کې یې شهرت وموند. بیا د شاه طهماسب دربار ته داخل شو او د اعتبار وړ وګرځېد په ۱۱۴۸ هـ ق کال کې یې پاچاهي ترلاسه کړه او په ۱۱۲۰ هـ ق کال کې ووژل شو. احمد شاه بابا د هغه کورنۍ د درباریانو له شورش نه وژغورله. د نادر افشار مېرمنې احمد شاه بابا ته د هغه د خدمت په بدل کې د کوه نور الماس وروبانښه له دې وروسته احمد شاه بابا له تدبیر نه کار واخیست او د مشرانو له خوا پر پاچاهۍ وټاکل شو.

۸ـ ښوونکي ته اضافي معلومات او ماخذونه:

احمد شاه بابا د اوسني افغانستان موسس او خواخوږي واکمن و. هغه د افغانانو د مېړانې تاريخ يو ځل بيا د نړۍ پرمخ وځلاوه. په دې معنا چې ۱۵ - ۱۷مې پېړۍ د افغانستان په سياسي ژوند کې ډېرې بدمرغې پېړۍ وې. په دې پېړيو کې افغانستان ملي حکومتونه له لاسه ورکړي وو، د واک ځواکونه ډېر کمزوري، محلي او کاواکه وو. د هېواد ختيځې سيمې د هند گورگانيانو لاندې کړې وې. د هېواد پر لويديځو سيمو د ايران صفويانو خپټه اچولې وه او د هېواد شمالي سيمې د ماوراء النهر د شيبانيانو لاسته لوېدلې وې. زموږ هېواد پرديو ځواکونو تر خپل منځ د مقابلې ډگر گرځولی و او زموږ پر خاوره به يې يو له بل سره جگړې کولې.

که څه هم د افغانانو سياسي واکمنۍ کمزورې وې خو تسليم شوې نه وې. (روښاني غورځنگ- ايمل خان مومند، دريا خان اپريدي او خوشال خان ختک په ډېره مېړانه د مغلو مقابله وکړه) تر دې وروسته د هېواد په لويديځ کې ميرويس نيکه د تورې او تدبير په گډ ځواک خپله خاوره د ايراني ښکېلاک نه خلاصه کړه.

له بده مرغه د ميرويس نيکه ځای ناستي د کورنيو مخالفتونو ښکار شول او زموږ هېواد يو ځل بيا د نادر افشار لاس ته ورغی. احمد خان د نادر افشار په پوځ کې يو ځوان خو پياوړی منصبدار و. د هند په فتوحاتو کې له نادر افشار سره ملگری و. هغه د سياست، جگړې او د هېواد د اداره کولو چارې زده کړې. هماغه وو چې د نادر افشار تر مرگ وروسته يې د هغه کورنۍ د شورشيانو له شره وژغورله او د قومونو د مشرانو په مرسته يې د افغانستان له لاسه تلونکی برم بېرته ترلاسه کړ او يو قوي افغانستان يې جوړ کړ.

احمد شاه بابا د يو ملي اتل او ځواکمن واکمن په حيث له ډېرو سياسي او جگړه ييزو بوختياوو سره سره پښتو ادب ته د قدر وړ خدمتونه کړي دي. لکه څرنگه چې دی پخپله شاعر و، نو د نورو شاعرانو درناوی او پالنه يې هم کوله.

احمد شاه بابا د پاچاهۍ په لومړيو دوو کلونو کې خپل لومړی ديوان راغونډ کړ. د هغه له ديوان څخه داسې ښکاري چې نوموړي د پاچاهۍ نه وړاندې شعر ويل پيل کړی و او لويه ادبي پانگه يې موږ ته راپرېښې ده.

د احمد شاه بابا ديوان پر غزل سربېره نارې، غاړې او څلوريځې هم لري. لومړی ځل عبدالحی حبيبي په ۱۳۱۹ هـ ش کال په کابل کې ترتيب او د پښتو ټولنې له خوا خپور شو او دوهم ځل په ۱۹۲۳م کال د پېښور د پښتو اکاډمۍ له خوا خپور شو.

دادی دلته د احمد شاه بابا يو ښکلی شعر د بېلگې په توگه راوړو:

شـــيرين عمـــر چـــې تېرېـــږي دريغـــه، دريغـــه
د اوبـــو پـــه څېـــر بهېـــږي دريغـــه، دريغـــه
ولـــې هـــسې شـــوې بېغمـــه زمـــا دلـــه
عمـــر بـــاد غونـــدې چلېـــږي دريغـــه، دريغـــه
کـــه هـــر څـــو پـــه نخـــرو جـــوړې کـــړې مـــانۍ
پـــه ارمـــان ځنـــې پـــاتېږي دريغـــه، دريغـــه
دا يـــاران لکـــه گلونـــه د بهـــار دي
د خـــزان پـــه تـــاو رژېـــږي دريغـــه، دريغـــه
دريغـــه، دريغـــه آخـــر دريغـــه زمـــا دلـــه

چې مېن خله ببلېږي دربغه، دربغه
که مقصود دې اشنايي وي ببلتون خپل کړه
ستا له لاسه در رسېږي دربغه، دربغه
احمد شاه به څه هوس کا وخت د غم دی
د ببلتون نوبت غږېږي دربغه، دربغه
(د احمد شاه بابا ديوان)

ماخذونه:


۱- د افغانستان لنډ تاريخ، پوهاند عبدالحی حبيبي.
۲- د پښتو ادبياتو تاريخ (منځنۍ دوره) زلمی هېوادمل.

# اوویشتم لوست

## د تدریس د لارښود پلان

**د تدریس وخت: (درې درسي ساعتونه)**

| د مطالبو سرلیکونه | د مطالبو شرحه |
| --- | --- |
| ۱ـ د لوست موضوع | لرغوني آثار |
| ۲ـ د زده کړې (پوهنیزې، مهارتي او ذهنیتي)موخې: | ـ د لرغونو آثارو پېژندل او پر اهمیت يې خبرېدل.<br>- د لرغونو آثارو د سیمو پېژندل.<br>ـ په افغانستان کې د لرغونو آثارو د ځایونو پېژندل.<br>ـ په لوست کې د بېلا بېلو گرامري جوړښتونو پېژندل او زده کول.<br>ـ د نوو لغتونو پېژندل او په جملو کې د کارولو د مهارت پیاوړي کول.<br>ـ د لوستلو او غوږ نیولو د مهارت پیاوړي کول. |
| ۳ـ د تدریس لارې: | لوستل او لیکل، پوښتنې او ځوابونه، ډله ییز فعالیتونه، یو کسیز فعالیت. |
| ۴ـ د تدریس وسیلې: | درسي کتاب، توره تخته، تخته پاک، تباشیر، کتابچه او قلم. |
| ۵ـ د ارزونې لارې:<br>د ارزونې وسیلې: | شفاهي ارزونه، عملي کار<br>د لوستلو، لیکلو او ډله ییز کار څارل او پایلې يې په کتابچه کې لیکل |
| ۶ـ د زده کړې او تدریس فعالیتونه: | لومړنی فعالیت: روغبړ، د حال احوال پوښتنه، د حاضرۍ اخیستل، د کورني کار کتنه |
| | د انگېزې رامنځته کول: د لاندې پوښتنې په طرح کولو سره د انگېزې پیدا کول:<br>ـ لرغوني آثار څه ته وايي، مثالونه يې ویلای شئ. |

| ۱-۲ د ښوونکي فعالیتونه | د زده‌کوونکو فعالیتونه |
|---|---|
| ـ د متن په لوستلو کې د زده‌کوونکو لارښوونه او د هغو هڅونه چې پوښتنو ته ځوابونه ووايي.<br>ـ د متن په لوستلو کې د زده‌کوونکو د تېروتنو سمول.<br>ـ هر زده‌کوونکي ته وخت ورکول چې پوښتنو ته ځوابونه ووايي.<br>ـ له زده‌کوونکو څخه ګرامري پوښتنې کول.<br>ـ د زده‌کوونکو هڅونه چې د ټولګي په مخکې خبرې وکړي او د لوست لنډيز ووايي.<br>ـ په ډلو د زده‌کوونکو وېشل او هرې ډلې ته د فعاليت ټاکل.<br>ـ د نويو کلمو په معنا کولو، جملو جوړولواو د تمرينونو په حلولو کې زده‌کوونکو ته لارښوونه.<br>- ښوونکی د کورنۍ دندې په اړه لارښوونه کوي. | ـ د متن لوستل او د کتاب پوښتنو ته سم ځوابونه ويل.<br>- زده‌کوونکي پوښتنو ته ځوابونه وايي.<br>- زده‌کوونکي په متن کې عام او خاص نومونه پيدا کوي.<br>- زده‌کوونکي د لرغونو اثارو په ارزښت خبرې کوي او مثالونه يې وړاندې کوي.<br>- په ډلو کې ګډون او د ډله ييز فعاليت سرته رسول.<br>- زده‌کوونکي د ښوونکي د لارښوونې سره سم نوي لغتونه معنا کوي بيا يې په جملو کې کاروي او د تمرينونو په حلولو کې برخه اخلي.<br>- زده‌کوونکي په کورنۍ دندې ځان پوهوي او کورنۍ دنده په کورونو کې بشپړوي. |

۷ـ د متن د ستونزمنو برخو روښانه کول:

لرغونپوهنه د ټولنيزو علومو هغه څانګه ده چې په پرله پسې او منظمه توګه هغه منابع او مادي اثار (لکه د کار وسايل، صنايع، د اوسېدو ځای او نور) چې د پخواني کلتور د پېژندلو وسيله ګرځي مطالعه کوي. يو بل او نژدې ټولمنلی تعريف يې داد ی:

لرغونپوهنه هغه علم دی چې د خپلو علمي اصولو پر بنسټ د لرغونو انسانانو او د هغوی د اړوندو ټولنو د هر اړخيزې ودې څرنګوالی راپېژني.

لرغونپوهنې ته په دري کې باستانشناسي او لاتيني کې ورته ارکيالوجي (Archeology) وايي.

۸ـ ښوونکي ته اضافي معلومات او ماخذونه:

سيکې: فلزي پيسې چې له ډېرو پخوا وختونو راهيسې د راکړې ورکړې لپاره کارېږي. اوس يې ځای کاغذي پيسو يا نوټونو نيولی دی؛ خو بيا هم کوچنۍ پيسې يې لاتر اوسه رواج لري.

کتيبې: هغه ليکنې چې په فلز، پاڼو، کاغذ او نورو څيزونو شوې وي او لرغوني اهميت ولري.

ډبر ليکونه: هغه ليکنې چې په تيږه باندې شوې وي او تر ډېره وخته پايېږي. دغه ډول ليکنې له پخوا څخه دود دي.

مجسمې: په پښتو کې يې پرۍ بولي. مجسمې هغو انساني يا حيواني څېرو او شکلونو ته ويل کېږي چې له خټو، تيږو، فلزونو يا نورو څيزونو څخه جوړې شوې وي.

لرغوني سيمې: هغه سيمې چې پخوا پرې د تمدن يوه دوره تېره شوې ده او دغه ډول لرغوني توکي ترې اوس لاس ته راغلي وي لرغوني سيمې يې بولي.

هډه، بګرام، ای خانم، بلخ، بغلان، سورکوتل، د لوګر چرخ، ميرزکه (پکتيا) بست کلا، کابل بالاحصار او

نورې هغه سیمې دي چې تاریخي او لرغوني حیثیت لري.
موزیم: هغه ځانګړې وداني ده چې لرغوني آثار پکې ساتل کېږي. د افغانستان ځینې موزیمونه دا دي: په کابل کې ملي موزیم، د غزني موزیم، د هرات موزیم او نور.
په افغانستان کې د ډبرې د دورې کشف شوي او مېندل شوي شیان لومړی ځل په ۱۹۵۱م. کال کې د الچین (Alchin) له خوا وروسته په ۱۹۵۴م کال کې د کاریتون س ګون په واسطه لاس ته راغلل تر دې وروسته پروفیسر لویي دوپري هم د هېواد په شمال کې خپله مقدماتي سروې د ساحوي تثبیت په نامه ترسره کړه.

ماخذونه:


۱. لرغونپوهنه، پوهنوال محمدرسول باوري، د افغانستان د کولتوري ودې ټولنه، ۱۳۸۰هـ ل کال.
۲. موزیم پوهنه، پوهنوال محمدرسول باوري، د افغانستان د کولتوري ودې ټولنه، ۱۳۸۲هـ ل کال.
۳. په افغانستان کې لرغون پېژندنه، دویم ټوک، د محقق نظر محمد عزیزي لیکنه.

# اته ویشتم لوست

## د تدریس د لارښود پلان

### د تدریس وخت: (درې درسي ساعتونه)

| د مطالبو سرلیکونه | د مطالبو شرحه |
|---|---|
| ۱_ د لوست موضوع | د هنري نثر ډولونه |
| ۲_ د زده کړې (پوهنیزې، مهارتي او ذهنیتي)موخې: | _ د نثرونو د ډولو پېژندل.<br>_ په پښتو ادب کې د مروجو نثري ډولونو پېژندل او پر موضوعاتو یې خبرېدل.<br>_ په زده‌کوونکو کې د لیکوالۍ د احساس هڅول.<br>_ د ژبني مهارتونو پیاوړي کول.<br>_ د نوو لغتونو او جملو جوړولو د مهارت پیاوړي کول.<br>_ له ځینو ګرامري جوړښتونو سره ښه بلد بېدل.<br>_ د لنډې کیسې، ډرامې، سفرنامې او طنز پېژندل. |
| ۳_ د تدریس لارې: | لوستل او لیکل، پوښتنې او ځوابونه، ډله ییز فعالیتونه، یو کسیز فعالیت. |
| ۴_ د تدریس وسیلې: | درسي کتاب، توره تخته، تخته پاک، تباشیر، کتابچه او قلم. |
| ۵_ د ارزونې لارې او وسیلې: | شفاهي ارزونه، عملي کار<br>د لوستلو، لیکلو او ډله ییز کار څارل او پایلې یې په کتابچه کې لیکل. |
| ۶_ د زده کړې او تدریس فعالیتونه: | لومړنی فعالیت: روغبړ، د حال احوال پوښتنه، د حاضرۍ اخیستل، د کورني کار کتنه. |
| | د انګېزې رامنځته کول: د لاندې پوښتنې په طرح کولو سره د انګېزې پیدا کول:<br>هنري نثر څه ته وایي او کومې لیکنې پکې راځي؟ |

| ۶-۱ د ښوونکي فعالیتونه | د زده‌کوونکو فعالیتونه |
|---|---|
| _ د متن په لوستلو کې د زده‌کوونکو لارښوونه او د هغو هڅونه چې پوښتنو ته ځوابونه ووایي.<br>_ د متن په لوستلو کې د زده‌کوونکو د تېروتنو سمول.<br>_ هر زده‌کوونکي ته وخت ورکول چې پوښتنو ته ځوابونه ووایي.<br>_ د زده‌کوونکو هڅونه چې د ټولګي په مخکې خبرې وکړي او د لوست لنډیز ووایي.<br>_ په ډلو د زده‌کوونکو وېشل او هرې ډلې ته د فعالیت ټاکل.<br>- د هنري نثر د لیکوالو په اړه له زده‌کوونکو څخه پوښتنه کول.<br>_ د تمرینونو په حلولو کې د زده‌کوونکو لارښوونه کول.<br>- ښوونکی د کورنۍ دندې په اړه معلومات ورکوي. | _ د متن لوستل او د کتاب پوښتنو ته سم ځوابونه ویل.<br>_ د ښوونکي خبرو ته غوږ نیول او د خپلو تېروتنو سمونه.<br>_ د ټولګي د کار ترسره کول او پوښتنو ته ځوابونه ویل.<br>- زده‌کوونکي په وار سره د هنري نثر په ډولونو خبرې کوي.<br>- په ډله ییزو فعالیتونو کې برخه اخیستل.<br>- زده‌کوونکي د هنري نثر د لیکوالو نومونه په ګوته کوي.<br>- د تمرینونو په حلولو کې برخه اخیستل.<br>- زده‌کوونکي په کورنۍ دندې ځانونه پوهوي او په کورونو کې یې بشپړوي. |

۷_ د متن د ستونزمنو برخو روښانه کول:

هنر: هر هغه فعالیت چې له محیط او طبیعت نه د تخیل په طاقت او د ښکلا پېژندنې په قواعدو رامنځته شي. هنر یې بولي. هر هغه اثر چې دد غه فعالیت په مرسته منځته راځي هنري اثر یې بولي.

۸ـ ښوونکي ته اضافي معلومات او ماخذونه:
هنري ليکنې، هنريت يا هنري ارزښت هغه ځانګړنه ده چې ادبي او نورې عامې غير ادبي ليکنې سره بېلوي. په هنري ادبياتو کې د ليکوال يا د اثر د رامنځته کوونکي ذوق، احساس او تمايلات د واقعيت او مطلب د افادې لپاره بنسټيز حيثيت لري. ليکوال هغه څه چې ليدلي، اورېدلي، احساس کړي او يا يې په ذهن او خيال کې تېرېږي بيانوي؛ خو د تحقيق او علمي ليکنو په څېر دليل راوړلو ته هېڅ اړتيا نه لري.
په هنري ادبي ليکنو کې د اديب تصور او تخيلي ځواک ستر نقش لري چې د بېلابېلو منظر کشيو (د منظرو انځورول)، انساني ټيپيکو (نمونه يي) خصوصياتو، روحياتو او عاداتو، حالاتو او نورو هنري الفاظو د انځورولو او وړاندې کولو لپاره ورڅخه کار اخيستل کېږي.
په دې ډول ليکنو کې ليکوال د خپل تخيلي ځواک په ملتيا د ليکوالۍ د فني مهارتونو په وسيله د منظر کشۍ او صحنه سازۍ کار سرته رسوي او حالات يا واقعيت په الفاظو کې داسې رانغاړي (انځوروي) چې لوستونکی يا اورېدونکی فکر کوي چې هر څه په خپلو سترګوويني او ځان کټ مټ په صحنه کې شامل احساسوي. دا نو د ليکوال په استعداد او فني مهارت پورې اړه لري چې انساني رواني حالات د خلکو هيلې او آرزوګانې، غوښتنې او جذبات عواطف او احساسات څنګه ترسيموي او مقابل لوري (اورېدونکي) ته جذبه او احساس څنګه ورلېږدوي او په عواطفو کې يې څرنګه خوځښت راولي.
هنري ليکنې د فورم او بڼې له مخې بېلابېل ډولونه لري لکه: لنډه کيسه، ناول، ډرامه، رومان، طنز، تکل، ادبي ټوټه، سفر نامه، ادبي راپورتاژ، ادبي نثرونه، ادبي ليکونه، ادبي انځور، ادبي خاکه، فلمي سناريو او داسې نور...
دادی دلته څو هنري ليکنې په لنډه توګه راوړو:
۱. لنډه کيسه:
لنډه کيسه هغه هنري داستان دی چې لنډ وي او له نيم ساعت نه تر دوو ساعتو پورې ختم شي.
يو بل تعريف يې داسې دی: لنډه کيسه د نثري کيسو يو ډول دی چې د يو بل سره له داسې عناصرو څخه جوړ وي چې يو د بل تر اغېز لاندې وي.
هېډسن وايي: د لنډې کيسې لپاره لنډوالی يوازينی شرط نه دی بلکې ددې تر څنګ ځينې نورې ځانګړتياوې هم لري او هغه دا چې د کيسې موضوع د خپلو حدودو په چوکاټ کې رانغښتل کېدای شي. بې ځايه او بې ضرورته خبرې پکې نه ځايېږي. د تاثر او اغېز يووالی پکې يوازينی شرط دی.
ناول: ناول ليکنه په اوسني مفهوم په اتلسمه عيسوي پېړۍ کې په اروپايي انګرېزي ادب کې دود شوه او په ۱۹مه او شلمه پېړۍ کې دغه فن خپل اوج ته ورسېد.
د نورو معاصرو هنري ادبي ژانرونو (صنفونو) په څېر ناول هم پښتو ژبې ته د شلمې پېړۍ په پيل کې له اردو ژبې او ادب نه راغلی دی. لومړنی پښتو ناول ميا حسيب ګل کاکاخيل په ۱۲۹۳ هـ ق کال د (نقش نګين) په نوم د ډپټي نذير احمد (مراة العروس) ژباړلی دی. بيا نور پښتانه له دغه فن سره اشنا شوي دي. سيد راحت زاخيلي ته د لنډې کيسې په څېر د لومړي ناول ليکونکي وياړ هم ورپه برخه دی.
ډرامه:
د ډرامې کلمه د يوناني ژبې د (ډارو) نه مشتق شوې چې معنا يې عمل دی. له همدې امله د ډرامې د پېژندنې په لړ کې دغه کلمه په کولو او ښودنه هم تعبير شوې ده.
بولټن وايي: ډرامه هغه ادب دی چې زموږ په وړاندې ګرځي او خبرې کوي.
په يوه بله پېژندنه کې لولو: ډرامه يوناني کلمه ده چې د عمل معنا ورکوي او په ادبي اصطلاح کې هغه اثر وي چې د ډيالوګ او خبرو اترو په فورم ليکل شوی وي. د قصد کوونکو له خبرو محروم او عادتاً د تياتر لپاره جوړه وي.
کالرج وايي: ډرامه د حقيقت نقل او د فطرت پېښې دي.

يو بل تعريف يې داسې دی: ډرامه په اصل کې د يوې ژوندۍ کيسې نوم دی چې ټول احساسات او جذبات پکې په عملي ډول د سترګو په وړاندې ښکاري.
رومان: رومان فرانسوي کلمه ده او په ادبي اصطلاح کې هغې کيسې ته ويل کېږي چې له ناول څخه اوږده وي، د ژوند ډېرې او بېلابېلې خواوې پکې منعکس شوي او د پېښو د يوې سترې لړۍ تصوير په ادبي قالب کې ځای کوي.
ادبي ټوټه:
ادبي ټوټه د هنري ادبياتو يو ځانګړی ډول دی چې ادبپوهان يې د (منثور شعر) او (لطيف ادب) په نومونو هم يادوي.
د ادبي ټوټې د پېژندنې په لړ کې ويل کېږي چې (ادبي ټوټه اصلاً نثري ليکنه ده؛ خو شعري کيفيت لري. نثري ليکنه خو يې ځکه بولي چې د شعر د اصلي او اساسي توکي او ځانګړنې (وزن) له قيد څخه آزاد وي. په دغه ډول ليکنو کې د لوړې انشاء خيال ساتل کېږي او د تشبيهاتو استعارو او کنايو استعمال پکې زيات وي.
ادبي ټوټه معمولاً حکايوي بڼه لري چې موږ ته د يو حقيقت او واقعيت په هکله په زړه پورې تشريح او توضيح کوي. خو دا توضيح او تشريح په داسې رنګينو الفاظو کې نغښتې وي چې په بشري احساس او عواطفو ژوره اغېزه کوي.
طنز: طنز د عربي ژبې کلمه ده چې فرهنګونو يې لغوي معنا ناز او کرشمه، پېغور، مسخره کول او رټنه ښودلې ده. او په ادبي اصطلاح کې د ادبي ژانرونو (صنفونو) څخه يو ژانر او د ليکنې ځانګړې لاره ده چې اصلي مقصد پکې انتقاد او ګوتنيونه ده. خو دا انتقاد د شوخۍ په بڼه يا په بله وينا د ريشخند او تمسخر په جامه کې نغښتی وي. په طنز کې د وينا لحن او انداز ډېر په زړه پورې او د ټوکو ټکالو په شکل وي او زياتره وخت پکې مسايل سرچپه (معکوس) مطرح کېږي.
په پيل کې خو داسې ښکاري چې طنز يوازې د خندا او شوخۍ لپاره دی. مګر بيا وروسته څرګندېږي چې ليکوال د ټولنې له نادودو او بدمرغيو څخه ځورېږي چې دغه ځورېدنه د ګيلې پر ځای د ټوکو ټکالو په قالب کې وړاندې کوي. ادبپوهان يې د هجوې (د بديو او عيبونو) د راسپړلو په معنا بولي. خو له غندنې سره يې توپير دادی چې په طنز کې د غندنې په څېر صراحت، تندي او تيزي نشته.

ادبي ليکونه:
ادبي ليکونه هغه ليکونه دي چې په ځانګړي ادبي بڼه ليکل کېږي او د هنري نثر د ځانګړي فورم په توګه پېژندل کېږي. انتقادي، فلسفي، سياسي او ادبي مسايل پکې راتلای شي؛ خو ژبه يې هنري، ادبي او د تخيل رنګ پرې غالب وي. طرز يې دومره ښکلی وي چې لوستونکی يې په لوستنه نه مړېږي.
ماخذونه:

۱_ شاړې کوڅې، دا سرونه دا رسمونه، راروان دي تور بادونه، دلته غرونه نه دي هسک محمد زرين انځور.
۲_ ګيلې، تبنتېدلی خوب، سفر، بريالی باجوړی
۳_ ايلبند ، امين افغانپور
۴_ ورکه، د پرښتې ځواب، حفيظ الله تراب
۵_ د ژمي ساړه بادونه، اسدالله غضنفر
۶_ رنځور، سيد احسان الله هېر
۷_ شريک بالاپوش، منان ملګری
۸_ د بنجاره هتيې، کاتب پاڅون
۹_ هو صيب نه صيب، تنګيال ...
۱۰- د ليکوالۍ فن، سيد محي الدين هاشمي، ۱۳۸۳هـ. ل. کال.